

# پهٔ سرو لمبو کښې قرار سنګه او کړم

لیکوالان

عبدالجبار سهل

توراج خاکسار

خپرؤونکي: سید کمپوزنګ سنټر توپي

# د کتاب ټول حقونه د مصنف پهٔ حق کښې خوندي دي


| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | : | پهٔ سرو لمبو کښې قرار څنګه اوکړم |
| ليکوالان | : | توراج خاکسار، عبدالجبار سَهل |
| کمپوزر | : | قاسم ساګر |
| کره کتنه | : | سيف الاحد عاجز |
| شمېره | : | 200 |
| بېعه | : | 300 روپۍ |
| چاپ کال | : | 2023 ء |
| چاپ ځائے | : | سيّد کمپوزنګ سنټر ټوپئ ( 0315-9887887 ) |







# ترون

د خپل ماما عبدالحنان روان صیب پهٔ نوم چې
زما ادبي روزنه ئې ډېره پهٔ پښتنه مينه کړې ده۔

# خپلې خبرې

ملګرو شعر وشاعري زما پۀ ختهٔ کښې اغږلے شوې ده ـ زما نیکۀ سېد کرم اخون د خپل وخت منلے شوے شاعر وۀ ـ زما محترم پلار هم شاعري کوله ـ زما ماما عبدالحنان اخون د اتمان ګدون پۀ شاعرانو کښې یو پېژندلے نوم وۀ ـ زۀ هم نزدې د پینځه څلوېښتو کالو راهسې شاعري کوم ـ د ټوپۍ مشهور اولسي شاعر جمشېد استاذ سره مې ډېر نزدې تعلق پاتې شوے دے ـ د شعر وادب پۀ وجه مې د اتمان ګدون بخت شېر اسیر ، فقیر خطاب ملنګ ، امیر بشر طوفان او خدائے بخښلي شوکت علي سجاد سره دوستانه تعلقات وو او پۀ دې اتمان ګدون به مې هم ادبي هلې ځلې کولې ـ د شعر و شاعرۍ سره مې تعلق ډېر زوړ دے خو قلم مې نۀ وۀ ، تعلیم مې نۀ دے کړے نو کۀ غزل مې جوړ کړے دے کۀ چاربېته او کۀ لوبه نو لیکلي مې نۀ ده ـ او نۀ زما کتاب چاپ کولو ته نیت وۀ خو د ډېر محترم مشر عبدالجبار سهل صېب مینې مجبور کړم چې د عبدالجبار لالا سره پۀ ګډه کتاب چاپ کړم ـ دې کتاب کښې چې زما څومره کلامونه دي د خپلې حافظې پۀ مدد لیکلے شوي دي

زيات کلامونه اوس ماته ياد نۀ دي ـ خو چې څومره غزلې ، چاربېتې ، لوبې راته يادې شوې دي نو دې کتاب کښې مې پښتون قام او پښتو ادب ته ډالۍ کړي دي ـ زما شاعري ښۀ ده ، بده ده دا پۀ لوستونکو پرېږدم ـ زۀ د خپل مهربان مشر عبدالجبار لالا هم ډېره مننه کؤم ـ چې زۀ ئې خپلو کلامونو چاپ کولو ته وهڅولم ـ د ګران او وتلي شاعر سېف الاحد عاجز هم ډېره مننه کوم چې زما د ماتې ګوډې شاعرۍ پروف ريډنګ ئې اوکړو ـ د ځلمي ليکوال قاسم ساګر هم مننه کؤم چې پۀ ډېره مينه ئې د کمپوزنګ ذمه واري واخسته ـ د بخت شېر اسير صېب ، ملنګ جان مندڼ صېب ، سېف الاحد عاجز صېب او قاسم ساګر صېب پۀ دلو دلو مننه چې زما پۀ شاعرۍ ئې ليکونه اوکړل ـ د علي زر خان علي صېب هم ډېره مننه کوم چې ددې کتاب پۀ چاپ کولو کښې ئې قدم پۀ قدم زما مرسته اوکړه ـ اؤ بالخصوص د سيّد اسد شاه صيب (باچا جی) پۀ دلو دلو مننه چې زمونګ کتاب له ئې ډېر ښائسته ټائټل جوړ کړو۔

توراج خاکسار
خپل کور، ټوپۍ
15-11-2023

# "د سپېځلي فکر سختن"

پښتو ژبه پۀ دې حواله بختوره ژبه ده چې سره ددې چې نۀ خو ئې ملکي چارواکي (حکومتي حلقې) څۀ سرپرستي کوي او نۀ ئې خپل شته من خلق څۀ خیال ساتي کۀ زۀ دا ووایم نو شاید چې غلطه به نۀ وي چې پښتانۀ همېشه پۀ پردو ژبو ویاړ کوي ـ او خپلې مورنۍ ژبې ته سپک ګوري ـ حالانکې د قومونو پۀ ثقافتي اجزاؤ کښې د ژبې ډېر لوئې اهمیت دے ـ د ژبې پۀ شته من والي قومونه شته کېږي ـ او د ژبې پۀ ورکېدو قومونه ورکېږي ـ پۀ دوېم نړېوال جنګ کښې چې کله امریکې پۀ جاپان حمله اوکړه نو د جاپان بادشاه ورته ووې چې زما د قوم نه خپله ژبه مۀ شوکوئ یعني پۀ دوي پردئ ژبه مۀ مسلط کوئ ـ ډېرې ژبې ځکه د منځه لاړې ختمې شوې چې حکومتي چارواکو ئې سرپرستي نۀ کوله او خپلو خلقو ته ئې پۀ وئیلو ځان سپک ښکارېدلو ـ د نن نه پینځویشت دېرش کاله اګاهو چې ټچ موبائل د هر چا لاسو ته نۀ وۀ رارسېدلے ـ کاغذ هم ارزان وۀ پۀ کتابت (خېر اوس خو کمپوزنګ دے) پۀ ټائټل او د کتابونو پۀ ګنډلو (بائنډنګ) هم ډېره خرچه نۀ راتله ـ پۀ هر کال کښې به

اتیاؤ نه تر سلو پورې کتابونه چاپ کېدل ـ زۀ چې وایم پښتو بختوره ژبه ده نو ددې دومره ستونزو او مشکلاتو باوجود پۀ کال کښې دېرشو نه څلوېښتو پورې کتابونه د نظم ، نثر ، تاریخ چاپ کیږي ـ

نن چې زۀ پۀ کوم کتاب لیک کؤم ـ دا کتاب د ښاغلي توراج (چې خاکسار ئې تخلص دے) نظمیه شاعري ده ـ د توراج چې څنګه تخلص دے داسې پکښې خاکساري هم ده یو ډېر شډل بډل ساده سوده انسان دے اکثر پۀ محفل کښې چُپ ناست وي خو چې څوک ورته فرمائش اوکړي چې څۀ ووایه نو هاغه ملغلرې ئې د خلې نه دوړېږي چې د ډېرو خلقو سوچ هم ورته نۀ رسي او داسې به ولې نۀ وي ـ د هغۀ روزنه پالنه پۀ ادبي ماحول کښې شوې ده ـ د توراج خاکسار پلار نیکۀ پۀ هشتنغر کښې د چارسدې تحصیل تنګي ګنډهیري نومي کلي اوسېدونکے وۀ ـ توراج خاکسار هم پۀ دغه کلي کښې پۀ نورلس سوه شپږ پنځوسم کال د اپرېل د میاشتې پۀ څلورمه نېټه د اروانښاد محمد لالا پۀ کور کښې سترګې غړولې دي ـ دا هاغه هشتنغر دے د کوم پۀ باره کښې چې علي خان بابا پخوا وئیلي وو:

هشتنغر شو کان د زلفو د لبرو
ځکه نشته پۀ دا ملک دکان د مښکو

هشتنغر د شروع نه د ازادۍ علمبردار او د غلامۍ نه د نفرت کوونکيو ټاټوبے پاتې شوے دے ـ پۀ دې خاوره حاجي صيب د ترنګزو، ارواښاد فضل واحد او د ازادۍ لوئې مبارز رئيس الاحرار خان عبدالغفار خان چې پۀ باچا خان يادېدۀ او داسې نور ډېر خدائي خدمتګار تېر شوي دي ـ د هشتنغر پۀ حواله دا مشهور متل به شايد چې هر چا اورېدلے وي ـ کۀ هشتنغر خورې نا خو بد پرې مۀ وايه ـ ښاغلي خاکسار پۀ دغه خاوره کښې خړپوسې کړې دي او څوک چې پۀ کومه خاوره کښې خړپوسې اوکړي د هغۀ پۀ مزاج کښې د هغې خاورې اثرات ضرور وي ـ توراج خاکسار چې پۀ دې ننګيالۍ خاوره کښې اوزېږېدۀ نو د ژوند لس کاله ئې پۀ دغه خاوره تېر کړل ـ خو دې ته به څۀ د حالاتو جبر ووايو او څۀ به دا ووايو چې د اوبو دانو نصيبه به ئې دلته شوې وه توراج خاکسار صيب د يولسو کالو وۀ چې پۀ کال نورلس سوه شپږ

شپېتم د ستمبر میاشتې پۀ پینځلسمه نېټه ئې ټوپۍ ته کښېښوده. ځکه چې ورسره سم ئې خپل ژوند هم سپارلے وو. اوس هغه مرګ د مرګ ځان سره د ولاړ

کده راوړه. د خپلو ښۀ خویونو د هر چا سره د علېک سلېک او پۀ غم ښادۍ کښې د ګډون پۀ سوب ددې ځائے د خلقو زړونه داسې خپل کړل چې نن ځوک هم دا نۀ ګڼي چې ګڼې دوي بل ځائے نه راغلي دي. ددوي هره غم ښادي د مقامي خلقو د غم ښادۍ نه درنه وي.

توراج خاکسار صېب پۀ کال نورلس اویا کښې شاعري شروع کړه. بې تعلیمه دے خو کوم خداداد صلاحیتونه چې دې انسان ته خدائے ورکړي دي ډېر تعلیم یافته ورته حق حېران دي. مالیکلي دي چې ددۀ روزنه پالنه پۀ ادبي ماحول کښې شوې ده نو هغه داسې چې ددوي نیکۀ اروابناد سید کرم اخون لکه د امانت مالیار، نوره دین اخون، امان ګجراتي، احمد دین طالب، او داسې نورو ډېرو شاعرانو پۀ شان یو ډېر ښۀ شاعر تېر شوے دے. د شاعرۍ پۀ هر صنف ورته عبور حاصل وۀ. خو د چاربېتې ډېر ماهر وۀ. دغسې ددوي پلار اروابناد محمد لالا خو شاعر نۀ وۀ ولې ادب ذوقه ډېر وۀ پۀ شعر

پوهېدونکے انسان وۀ ډېر زاړۀ مجلسیان او شاعران به ئې لیدو ته راتلل ـ دغسې ددوي ماما عبدالحنان اخون چې وروستو ئې بیا روان تخلص خپل کړے وۀ مجلس به ئې هم کوۀ او د اولسي شاعرۍ ډېر ښۀ استاذ وۀ هغوي ته هم پۀ چاربېته ډېر مهارت حاصل وۀ ـ توراج خاکسار هم ددوي پۀ قدم قدم ایښودے دے ـ خو خاکسار صېب د چاربېتې سره سره غزل هم ښۀ لیکي ـ هغوي د ارواښاد جمشېد استاذ د ټوپۍ ، نادر خان بزمي ، ملنګ جان مندڼ، او نورو ډېرو ښو ښو شاعرانو سره ناسته پاسته کړې ده ـ خاص کر جمشېد استاذ خو پرې ډېر زیات مئین وۀ هغۀ به د خاکسار صېب لیدو دپاره اکثر ددوي ګاڼۍ ته تلو۔ واپسۍ کښې به خاکسار صېب جمشېد استاذ سره د بدرګې پۀ طور تر ټوپۍ بازاره راتلو ـ دغسې ارواښاد نادر خان بزمي سره ئې ډېر عقیدت وۀ پښتو پکښې دومره وه چې کله ئې د جنازې د مونځ دپاره ئې د جنازې کټ د ټوپۍ عیدګاه ته یوړو نو هغه کټ چې کومو څلورو کسانو نیولے وۀ چې پکښې دوه د هغۀ ځامن ساجد او شاهد او دریم د خاکسار صېب ماما

اروانباد عبدالحنان روان او ثلورم خاکسار صېب پۀ خپله وۀ د دغه لویو هستو سره د ناستې پاستې پۀ وجه د هغۀ پۀ شاعرۍ کښې یو زبردست زړۀ راښکون پېدا شۀ هم دغه وجه ده چې پۀ مشاعره کښې خاکسار صېب کلام وائي نو بې اختیاره د سامعینو د خلو نه بیا وواېه د بیا وواېه نعرې خېژي ـ هوښیاران وائي چې د هر محفل خپل خپل تاثیر وي ـ د مثال پۀ توګه د خاکسار صېب د یو څو کلامونو نه یو یو بېت راخلم ـ خوشحال بابا وائي :

کۀ اسمان دې د زمري پۀ خلۀ کښې ورکړي
د زمري پۀ خلۀ کښې مۀ پرېږده همت

توراج خاکسار صېب هم دغه خبره پۀ یو بل ډېر ښکلي انداز کښې کوي هغۀ وائي:

مثال د هغه چا قائم شي چې همت نۀ بائیلي
د کار سرے چې همت اوبائېلي د کاره اوځي

پښتنه ټولنه کښې پېغور ډېر بد شے دے ـ د پېغور پۀ وجه ډېر کورونه وران شي ؛ مرګ ژوبله پکښې اوشي ؛ ټول خلق در پۀ در شي ؛ د ملکه ورک شي خاکسار صېب دغه منظر کشي پۀ خپلو شعرونو کښې داسې کوي :

خوږ وي کلے کور خو د پېغور پۀ وجه پاتې شي
ځان پښتانۀ وژني د پښتو او د پېغور پۀ سر

څوک وائي د ځوانۍ عمر د نادانۍ وي او څوک وائي د دیوانۍ وي هم دغه وجه ده چې پۀ ځوانۍ کښې د چانه هر څومره معیوب کار اوشي خلق وائي نۀ پوهېږي خو چې عمر پۀ شا شي او چا نۀ څۀ غلطي اوشي نو هر څوک ورته وائي دې عمر ته دې اوګوره او دې کار ته دې اوګوره ـ خاکسار صېب داخبره څۀ پۀ دې ډول کوي :

ناداني پۀ ځلمیتوب کښې څۀ عېب نه دے
بد هغۀ وي چې نادان شي پۀ پیرۍ کښې

نن داسې وخت دے چې د چا نه د حيا طمع نۀ شې کولے سلو کښې يو کس به داسې وي چې هغوي به پۀ حيا او بې حيايۍ پوهېږي. نوره هغه خبره ده چې سدهوم ته شين دے. د حيا ، غېرت، پښتو صرف نومونه پاتې دي ځکه خو خاکسار صېب پۀ واز کومې دا وائي:

لاړه پښتو لاړه د حيا وختونه ختم شو
هېر کړو اوسنو خلقو غېرت پۀ توقو توقو کښې

(بخت شېر اسير توپۍ)

# پلار پۀ نیکۀ تخلیق کار او د هغۀ شعري مجموعه

زما خیال دے چۀ زیات لیک د توراج پۀ ذات اوکړم ځکه چې کتاب ئې خو ستاسو مخې ته خور دے۔ او هم تاسو ئې فېصله کولے شئ۔ چې خاکسار صېب ښۀ شاعري کړې ده او کۀ نۀ؟ توراج خاکسار صېب ته دا خداد صلاحیت د خپل پلار محمد لالا خدائے بخښلي نه او بیا د هغوي د نیکۀ سید کرم اخون نه پۀ میراث کښې پاتې راروان دے۔

نیکۀ ئې هم یو ډېر نوموړے شاعر وۀ۔ او د خپلې خواؤ شا علاقې نه به تقریباً پۀ نیمه پښتونخواه کښې ئې شهرت لرلو۔ هغه وخت چې دا فن پۀ پېسو نۀ خرسېدو شوقیه او میراثي وېناوال ئې بلها شاګردان وو۔ د هغوي وېنا به ئې یادوله او د پښتو د موسیقۍ محفلونه به ئې ښائسته کول لا تر دې دمه ئې بعضې خلقو ته چاربېتې یادې وې۔ هغه وخت د چاربېتو مئېنان ډېر وو۔ د نیکۀ نه وروستو والد صېب محمد لالا هم لږه خو خوږه شاعري کړې وه۔ خو هر چاته ئې پته نۀ وه ځکه چې ځان ئې شاعر

نۀ وۀ ښکاره کړے ـ البته د موسیقۍ محفلونه به ئې خوښ وو ـ د خپل پلار نه علاوه ورته د نورو ښو ښو شاعرانو لکه نوره دین استاذ ، احمد دین طالب ، امانت اخون ، صاحبزاده غلام قادر وېناګانې ورته یادې وې ـ

لکه د پلار توراج خاکسار هم ډېره زمانه ځان پټ اوساتلو ـ ددوي د مور ورور د توراج ماما عبدالحنان روان (چې وړومبے تخلص ئې اخون وۀ) چې ډېر لوئې د نامې جامې شاعر او ډېر ښۀ عالم هم وۀ ـ او مونږ سره به د مشاعرو پۀ محفلونو کښې شاملېدو ـ نو د هغوي پۀ وساطت مونږ ته د توراج د شاعرۍ او کمال پته اولږېده ـ او بیا به مونږ ورو ورو چېړو ـ اخر دا چې عبدالحنان روان صېب الله ته خوږ شو ـ نو توراج خاکسار صېب ئې مونږ ته ملګرتیا کښې پرېښودو ـ چې د اتمان ګدون لیکوال ملګري سرکرده غړے شو ـ خاکسارصېب ته د مور یعني ماما خېلۍ د طرفه هم شاعري پۀ میراث کښې پاتې شوه ـ توراج خاکسار ښۀ دروند زمیندار دے چې ورته ګورې نو ساده باده فقیر طبع انسان دے ځان ته څۀ

وائي نۀ ـ ځکه چې مدرسه او کتاب ئې پۀ سترګو نۀ دي ليدلي ـ خو کۀ محفل ئې درسره جوړ شو نو بيا به منې چې توراج هم دا توراج دےخپله قدر مند دے هر چاته د قدر پۀ سترګه ګوري ما لا تر اوسه دومره حياناک انسان نۀ دے ليدلے ـ مېلمه دوست دے خپل او پردي ته درناوے ورکوي ـ او وائي چې ما چرې هم د مېلمه يا د مېلمنو دپاره کور کښې د روټۍ نۀ دي وئيلي چې ماسره مېلمه يا مېلمانۀ دي ـ خو چې څۀ تياره وي هغۀ د يار دپاره وي ـ

پۀ اولس دوستۍ غم ښادۍ کښې دومره تېز دے ـ چې لا به درته خپل خپلوان ورور عزيز نۀ وي رارسېدلي او دا سړے به درته حاضر وي خو د خانانو نوابانو سره ئې قطعي نۀ لږي ـ چې يار دوست ئې څومره غريب وي نو ددۀ زړۀ ته قريب وي ـ توراج خاکسار صېب پۀ خپله د خپل وطن هشتنغر نه د ښۀ شته من کور فرد دے ـ اوس دا د الله وبش دے چې پېدا شوے پۀ هشتنغر کښې دے او روزي ئې ورله پۀ ټوپۍ کښې ايښې ده ـ چې زمونږ دپاره

دا د الله یو انعام دے ـ دلته ئې هم پۀ سرېتوب کښې څۀ کمے نۀ دے راغلے ـ څلور شپږ مزدوران ئې هر وخت د مخې اوړي را اوړي ـ خو پۀ لیدو به ئې دا فرق اونۀ کړے شي چې مزدور کوم یو دے او مالک کوم یو ـ

خاکسار واقعي چې خاکسار دے ځکه ډېر ځیرک انسان دے چې د وختونو تودې سړې پرې ډېرې تېرې شوې دي ـ پۀ هر رنګه محفل کښې خپل رول لوبولے شي نالوستے دے خو ددین د علومو نه زیات واقف دے ـ پۀ هره موضوع چې ورسره خبرې کوې نو خامخا به ئې جواب کښې ژورتیا محسوسوې د دیني ټولو احکامو پابند دے عمر به ئې تقریباً 67 کاله وي ـ خبره رانه اوږدېږي او اوږده شوه ـ کۀ ډېرې نۀ وي چې یو دوه خبرې پۀ مخکښې پروت کتاب هم اوشي ـ

د خاکسار صېب د کتاب چاپ کول ګران کار ځکه وۀ ـ چې هغوي کلام لیکلے چرته بیخي نۀ وۀ ـ چې څۀ وو هغه هغوي سره سینه کښې محفوظ وو ـ بیا به هغۀ ته خپل کلام غزل ، نظم ، رباعي چاربېته چرته د موقعې پۀ

مناسبت یادېدله ـ یو یو کلام دپاره سوچ کول ؛ بیا لیکونکے پېدا کول ؛ هغهٔ ته لوستل او بیا لیکل ډېر مشکل کار وهٔ ـ خو څه ملګرو له دې الله پاک ډېر خېر پهٔ جولو کښې واچوي ـ چې ځان ئې ورسره اوکړوهٔ ـ او دا دومره شعرونه ئې ترې نه خوندي کړل ـ د خاکسار صېب سینه خو ددې نه د ښو او زیاتو شعرونو نه ډکه ده خو د لیک مسئله ده چې کله هغهٔ ته رایاد شي نو لیکونکے نهٔ وي چې لیکونکے وي نو یادېږي نهٔ ـ

د خاکسار صېب کلام خو ستاسو د وړاندې پروت دے کهٔ زهٔ ئې ډېر تعریف اوکړم نو کم دے او کهٔ اوئې نهٔ کړم نو نهٔ ګز لرې او نهٔ مېدان ـ د چا خبره نمر پهٔ ګوته نهٔ پټېږي ـ خاکسار صېب چې څهٔ تخلیق کوي نو یو مضبوط بنیاد ئې خامخا وي نو مضبوط کار خو بې کړاوه کېږي نهٔ ګنې شعرونه خو هر وخت جوړولے شي ـ د هغوي خوندي اشعار ددې مجموعې چې نوم ئې "پهٔ سرو لمبو کښې قرار څنګه اوکړم" بله د عبرت نه ډک نصیحت اموز اشعار پکښې موجود دي ـ او بیا دا چې د هغوي هر شعر

انتخاب هم دے ـ روماني لیک ساده باده د چاپېرچل د مثالونو نه ډک دے ـ چې د عام تخلیق کار پۀ خوا خاطر کښې هم نۀ راځي ـ

زمیندار سړے دے دکار او بې کاره بوټے ډېر ښۀ پېژني هغۀ ئې پۀ خپلو شعرونو کښې پۀ داسې ترتیب پېرلي دي ـ چې سړے ورته حق دق حېران پاتې شي بله لویه خبره دا ده چې خاکسار صېب حق پرست ، حق ګو او حق شناس شاعردے ـ چې کومې ګډې وډې خبرې پۀ معاشره یا پۀ دین کښې داخلې شوې دي ـ د سوچ نه بالا تر هغې پۀ موجوده ماحول کښې یو مقام هم موندلے دے د هغې تور ئې پۀ ډېر ښکلي انداز کښې کړے دے ـ
لکه چې وائي !

لیل او نهار شمس او قمر کښې تبدیلي نۀ راځي
دریاب به څنګه موج کمئ د قلندر پۀ خوښه

ما وې خاکسار صېب د خپل چاپېرچل نه څیزونه خپلو شعرونو کښې د ښائست دپاره ځایوي ـ

ببره د دېوال نۀ شي او رنډه دال توره نۀ شي
ټال شه د ګړنګ پۀ سر هوا به درنه جوړه شي

حسن شه نغمه شه شين ورخاړے شه د بام پۀ سر
رحم پۀ توراج اوکړه دوا به درنه جوړه شي

يا دا چې!
اوري پرې حجر چې پۀ شجر کښې ثمر اولګي
شنډ چې شي انګور د دېوالونو پۀ سر پېټې شي

بله د مزې خبره دا ده چې خاکسار صېب د چاربېتې ازمائېلے شاعر دے پۀ زړو او نوؤ طرزونو ئې اشنا او نا اشنا ډېرې چاربېتې جوړې کړي دي ۔
چې پۀ دې کتاب کښې صرف نمونې شته ۔ د خپل کلي پۀ يو نظم کښې ئې د کلي نقشه ډېره پۀ ښائسته ډول جوړه کړې ده ۔ يو دوه بندونه ترې د پېژندګلو دپاره راخلم۔

علي خان دلته زېږېدلے ، زمونږ نیکونو به وې
دې قبرستان کښې شته دے ځلے ، کوي پرې خلق دعوې

پۀ ګوته نمر کله پټېږي
زمونږ د کلي اوبۀ پۀ نورو کلو تقسیمېږي

د هشتنغر بره حصه ده ، د ګنډېري اړخونه
هم ئې تاریخ هره کوځه ده ، تېر پرې بلها مخونه

قومونه ډېر پکښې اوسېږي
زمونږ د کلي اوبۀ پۀ نورو کلو تقسیمېږي

نورې خبرې پۀ قرآن کښې مزه کوي ـخو د توراج خاکسار صېب دا کتاب نصیحت آموز هم او د مینې ، ورورولۍ او د اخلاص پېغام هم دے ـ دا لږ کلامونه مې د هغوي د شاعرۍ نه د نمونه خروار پۀ حېث راخستي دي ـ او د لوستونکو پۀ وړاندې مې ایښي دي ـ نور د لوستونکو خوښه چې هغوي خاکسار صېب د کوم مقام جوګه ګڼي ـ

پهٔ ډېر درناوي

ملنګ جان منډړ

سرپرست اعلیٰ "اتمان ګدون لیکوال ملګري"

۳۰ ربیع الثاني ۱۴۴۰

بمطابق 16 نومبر 2023

## "د توراج خاکسار شاعرئ ته یو نظر"

اولسي ادب چې د یوې ټولنې د کلتور، تاریخ، تهذیب او تمدن په اصلي بڼه کښې د ښکاره کؤلو د پاره د یوې هینداريې حېثیت لري. دغه اولسي ادب د لیکلي ادب نه ډېر وړاندي د پېړو پېړیو راهسې راروان دے او د یوې زمانې نه بلې زمانې ته انتقالېږي خو زما پۀ خیال دا زمانه پۀ اولسي ادب کښې د تخلیق وروستۍ پېړۍ ده ځکه چې اولسي تخلیق کار د تعلیم او مطالعې پرته پۀ خداداد صلاحیت سره د خپل تخلیقي قوت پۀ اساس یو داسې سوچه تخلیق د اولس مخې ته راؤړي کوم چې په ټولنیز ژوند کښې د هغۀ د ژورې مشاهدې او د کلونو کلونو د تجربې نچوړ وي او زما نۀ دے خیال چې په دې جدید دؤر کښې لۀ دې نه وروستو څوک تخلیق کار ناخوانده پاتې شي او بغېر د مطالعې خپلو جذباتو او احساساتو له د شعر ژبه ورکړي هم دا وجه ده چې زۀ خپل ځان ډېر خوش بخته ګڼم چې په یو داسې دؤر کښې د ژوند ورځې شپې سبا کؤم چې هم راته د لیکونکي ادبي

مشرانو او هم راته د اولسي ادبي مشرانو په صحبت کښې د ناستې ولاړې زمينه برابر ده په دغه ادبي مشرانو کښې يو نوم د ډېر ګران مشر اولسي شاعر توراج خاکسار کاکا هم دے د چا د شعر ژبه چې خوږه، اسانه او روانه ده ځنګه چې توراج کاکا يو ابغ نبغ زميدار سړے دے هم دغسې ئې شعر هم ابغ نبغ، ساده سُوده مګر اغيزناک دد توراج کاکا شعري مجموعه په دوه برخو مشتمله ده په اوله برخه کښې غزلې دي او په دوېمه برخه کښې چاربېتې۔ زۀ اکثر ملګرو ته دا خبره کؤم چې زما د پاره صنف هېڅ معنیٰ نۀ لري بلکې زما د توجو مرکز همېشه فن او موضوع وي اوس کۀ مونږ د پښتو عروضي نظام په نظر کښې ونيسو او د کاکا د کلامونو تنقيدي جاج واخلو نو په بعضې ځايونو کښې د سيمه ايزي لهجې په وجه فني کمزورۍ لري خو چونکه اولسي شاعر د دغه رقم عروضي نظام د اصولو نه مبرّا وي نو دغه د لهجې په وجه کۀ چرته سېلاب کم يا زيات وي نو فني کمزوري نۀ ده بلکې د لهجې هاغه سوچه والے دے کوم چې د توراج کاکا په چاپېرچل کښې مېشتۀ خلق کاروي

نو لهٰذا په دې نقطه مونږ نیوکه نهٔ شو کؤلے او پاتې شوه موضوع نو په دې کتاب کښې د توراج کاکا د هر کلام موضوع ( خواه کهٔ هغه د ګل ده او کهٔ د بلبل ده، د دوران ده او کهٔ د جانان ده) په عقیدوي روایاو او ټولنیز اقدارو داسې رنګ ده چې لوستونکي داسې محسوسیږي لکه چې د هغهٔ د زړهٔ خبرې ئې د شعر په چوکاټ کښې رابندې کړې وي توراج کاکا د سر تر پایه د پښتو، پت او پښتون ولۍ یو ژوندۍ نمونه ده ددې اندازه مونږ ته د هغهٔ د عملي ژوند نه علاوه د هغهٔ د شعرونو نه هم کیږي

شعر د اشارو ژبه ده او د غه اشارو د پاره تخلیق کار ته اکثر وختونو کښې د تراکیبو، روزمرو، متلونو او محاورو ضرورت راپیښیږي خو دغه ټول لوازمات د شعر په لنډ تنګ چوکاټ کښې په یو داسې منفرد انداز رابندؤل چې خبره مبهمه پاتې نهٔ شي او لوستونکي ته په وړومبي نظر د تخلیق کار مطلب او مقصد په ډاګه شي دا ډیر لوے هنر غواړي او د دغې هنر مظاهر توراج کاکا په هر دوېم، دریم کلام کښې دومره په ښکلي انداز تکرار کړې ده چې سړے ورته ګوته په خلهٔ پاتې شي مختصر دا چې د نړۍ په هر ګوټ کښې چې

کوم قامونه ژوند کوي نو هر قام خپل دود او دستور لري او ژوند ته د خپلې ځانګړې زاويې نه ګوري دغه وجه ده چې د هر قام په اولسي ادب کښې د هغې قام عقيدوي، سياسي، فرهنګي، کلتوري تاريخي او اولسي ژوند ته د هغوي نظر لوستونکي ته په ډاګه کېږي کۀ چرې مونږ غواړو چې د يو مخصوص قام په اړۀ پاخۀ او کوټلي معلومات تر لاسه کړو نو بايد چې د هغوي اولسي ادب ولولو ـ

دغسې د توراج کاکا تخليقات هم د خپلې مخصوص جغرافيې دننه د تخيل په نيلي سور هاغه شهسوار دے چې نۀ د خپلې ټولنې د مذهبي رواياتو نه لاس په سر شوے دے او نۀ ئې د خپلو کلتوري او فرهنګي اقدارو د مصلحت نه کار اخستے دے او د سيمه ايز ژوند د دود دستور، سياست، ثقافت او فطرت داسې ترجماني ئې کړې ده چې د کاڼي کرښې دي

سيف الاحد عاجز
سينئر نائب صدر
"اتمان ګدون ليکوال ملګري"

# نظم

خپل عمل کړه برابر قرآن سره
رابطه دې ختموه شیطان سره

مال دولت متکبره کړې کوږ ګرځې
وې پېښې به دې یو ځل سبحان سره

د دنیا پۀ تاوان ګټه د اخر شي
ځان بلد کړه د دنیا تاوان سره

کوم حساب چې پۀ محشر درسره کیږي
نن هغه حساب کوه د ځان سره

پۀ توبه ابو سفیان د اللّٰه دوست شو
د دنیا نه شو رخصت ایمان سره

همېشه له استغفار وایه **توراجه**
خزانې د رحم شته رحمان سره

# غزل

پۀ لاروي ګمان د غېږ د جانان څۀ له کوې
د وخت نا اهلو ته د مينې بيان څۀ له کوې

د دنګو غرونو پۀ سر تنګې لارې خامخا وي
تۀ پرې د ښار د سړکونو ګمان څۀ له کوې

چې نۀ ئې زرګر جوړوي نۀ چرته پۀ کلي کښې شته
اوسنو پېغلو ته صفت د پېزوان څۀ له کوې

د عبرت نخښه او تاريخ شه د راتلونکي نسل
لکه د چرګ پۀ دېوالونو اذان څۀ له کوې

بس دومره بس دے چې پرې سر د نمر نه سوري ته شي
چې خاورې کيږي پۀ کفن مې تاوان څۀ له کوې

هسې اوبۀ پۀ ډانګ وهل دي څۀ ترې نۀ جوړېږي
پۀ تېر ساعت پسې **توراجه** ارمان څۀ له کوې

# غزل

باد د پسرلي د بهار اولګېږد
هر **بلبل** د **ګل** پهٔ رخسار اولګېږد

پرخه د سبا غوټۍ غوټۍ شوله
ورځ شوه د خوبانو دربار اولګېږد

پاسه کهٔ دیدن کوې ګودر ته څه
نمر د کنډاوګي پهٔ چنار اولګېږد

دشتو کښې شینکي څانګې خورې کړې
سر پرې د شپونکې د ګوار اولګېږد

نن چې یار رټلے یمه بې ګناه
دا پهٔ ما نظر کهٔ ازار اولګېږد

راغلل کشمیري طوطیان لړۍ لړۍ
بیا زمونږ د کلي جوار اولګېږد

ووایئ همزولو دا به څهٔ کیږي
اور پهٔ یارانه د **خاکسار** اولګېږد

# غزل

چغه د حسرت نۀ شې ژړا به درنه جوړه شي
کرکه د چا مۀ کوه جفا به درنه جوړه شي

غَز د ادېرې شه کۀ مېوه نۀ کړې نو ګور که ځان
ژبه د منصور نۀ شې سزا به درنه جوړه شي

ببره د ډېران نۀ شې او رنډه دال توره* نۀ شې
ټال شه د ګړنګ پۀ سر هوا به درنه جوړه شي

توره زنه ،شنه خالونه ، ټوله مینه مینه شه
پاڼه د تاریخ به شې لیلا به درنه جوړه شي

زېرے د اختر شه شپه د قدر شه تېرېږه مۀ
پرخه پۀ ګلونو شه مُسکا به درنه جوړه شي

*دال توره د یو بوټي نوم دے چې حکیمان ئې پۀ دوایۍ کښې استعمالوي۔
†دا لفظ پۀ اصل کښې انډے دے خو د قافیې د مجبورۍ له وجې مو انډې کړو.

حُسن شه نغمه شه شين ورخاړے شه د بام پۀ سر
رحم پۀ **توراج** اوکړه دعا به درنه جوړه شي

# غزل

څنګه چې سیورے بدلوي مقام د نمر پۀ خوښه
داسې مئېن هم بدلوي پل د دلبر پۀ خوښه

محمود بادشاه ایاز غلام وۀ دا جدا خبره
ګڼي بادشاه کله چلیږي د نوکر پۀ خوښه

لیل النهار ، شمس و قمر کښې تبدیلي نۀ راځي
دریاب به څنګه موج کمئ د قلندر پۀ خوښه

دا خو الله دے چې حالاتو کښې بدلون راولي
ګڼې ایسار به مازیګر وۀ د ګودر پۀ خوښه

هغه د جبل قبدي د مصر بادشاه څنګه جوړشو
بس فېصلې کبري د لوئې غني اکبر پۀ خوښه

مخلوق کۀ خپله فېصله د تقدیر کولے شوله
یعقوب راوړے به وۀ سترګو له نظر پۀ خوښه

**توراجه** څوک چې د الله شي د هغۀ الله شي
ځکه ئې کړي فېصلې دي د عمر پۀ خوښه

# غزل

ګنګوټان ښکلوي ګند او ګلاب نهٔ
بې وقوف غلطي زده کړ او اداب نهٔ

هغه چنې د مکتب به ملا نهٔ شي
چې سندرې وائي لولي کتاب نهٔ

د غرض مینه د شوم سړي دولت دے
سود ئې خوښ وي دعاګانې ثواب نهٔ

مکانونه پهٔ کږو غرونو جوړېږي
چا جوړ کړي لا پهٔ سر د حباب نهٔ

ته پرې هغسې ګمان د جوانۍ کړې
پهٔ **توراج** پیري رادرومي شباب نهٔ

# غزل

د لوپټې پلؤ ئې سوال کړي د وېختو څوکو ته
نوره مې مۀ نزدې کوه د سرو لمبو څوکو ته

د کلي کور پۀ غېږ کښې خوب کړي باشعوره خلق
څوک چې باغي شي هغه وخېژي د غرو څوکو ته

اشنا وعده اوکړي اقرار اوکړي بيا هم نۀ راځي
اوښکې بغېر د وعدې راشي د بڼو څوکو ته

خوبان ترې تور اوربل له سرۀ ګلونه اوشوکوي
لېونۍ سرۀ لاسونه اچئ د ازغو څوکو ته

تورې ګورګورې لا د تورو غرو لمنې ساتي
ورخاړي اوختل پټو نه د بنګلو څوکو ته

لاړې هغه پېغلې د تورو خاورو لاندې شولې
چې به ئې سپياکې خېژولې د بلو څوکو ته

نن چې **توراج** پۀ کاڼو ولې چې پۀ دې مۀ راځه
سبا ئې مۀ اچو ګلونه د خزو څوکو ته

# غزل

پرخه د سبا د سرو ګلونو پۀ سر پېښې شي
کله کله مینه هم د زړونو پۀ سر پېښې شي

سر نه د مشرک ، د سروې سر ښۀ وي ټېټيږي نۀ
داسې زندګۍ د عملونو پۀ سر پېښې شي

اوري پرې حجر چې پۀ شجر کښې ثمر ولګي
شنۀ چې شي انګور د دېوالونو پۀ سر پېښې شي

اؤرو دا متل چې د خزلې ځائے ډېران وي بس
خرۀ چې شي مُردار د ډېرانونو پۀ سر پېښې شي

ډېرې خلې دعا غواړي لائقې د شفا نۀ وي
راشي احمقان د محفلونو پۀ سر پېښې شي

مۀ چېږه خوبان **توراجه** هر وختې سپرلے نۀ وي
بعضې لوپتې د اوربلونو پۀ سر پېښې شي

# غزل

کۀ ناراض شې د تمام واړه جهانه
نۀ څۀ جوړ وي نه به جوړ شي د خفګانه

ستا کاتۀ هم پۀ بدل هم پۀ احسان دي
زۀ یربږم لۀ بدل او لۀ احسانه

پۀ ژوندون کښې چې سکون نۀ وي زندان وي
خوشحالیږي چې څوک خلاص شي د زندانه

نۀ چلیږي دا دنیا او نۀ روزګار ئې
چې زۀ کرکه کړم له تا او تۀ زما نه

پۀ هغې دولت به څۀ خوشحالي اوکړې
چې دې خلاص کړي لۀ حیا او لۀ ایمانه

بادشاهان هم فقیرانو ته سلام کړي
فېصلې دي راوریږي لۀ اسمانه

چې اسباب د پتېدو ورسره نۀ وي
څۀ به پټ شي په بيديا کښې لۀ بارانه

د **توراج** خاکسار ساده ساده خبرې
ملاوېږي بې پېسو او بې تاوانه

# غزل

امن مړرو کښېږ نشته ښار کښې نشته
امن پهٔ کور او پهٔ بازار کښې نشته

د جماعت صف کښې غلهٔ دي ور کښې غلهٔ دي
کومه بلا ده چې پهٔ لار کښې نشته

بچو به حق غوښتو د خپله پلاره
د حق خبره اوس پهٔ پلار کښې نشته

کاشتکاره شپول راپاخي فصل دې خوري
سکون پهٔ لیل او پهٔ نهار کښې نشته

پهٔ غل ټوپک ئې اولي شور هم نهٔ کئ
امن مرغو ته پهٔ چینار کښې نشته

مولوي صیب لېټ شو مقتدیان ګورېږي
خبر دے ګناه پهٔ انتظار کښې نشته

دو نمبرۍ باندې اوس فخر کېږي
پېسې اورېجنل کاروبار کښې نشته

پېسې ئې اوګټلې حج له پرې ځي
کرکه پۀ زړۀ د ایماندار کښې نشته

**توراجه** تۀ ساده ئې غلے کښېنه
ساده سړے هډو پۀ شمار کښې نشته

# غزل

زندګي هله ښائسته شي چې خوږه شي
چې ترخه شي لکه ستنه چې کږه شي

هغه ونه کهٔ د باغ وي کهٔ د سبوري
چې راپربوځي اخر د اور جوګه شي

چې نهٔ قد نهٔ ئې قامت نه ئې ثمر وي
کوږ غوړاسکے نهٔ دُرشل نهٔ به برګه شي

اصل اصل وي رښتيا خبره دا ده
د ريښمو کپړه ښنګه به زيګه شي

پيغلې برغ منګي اوړي خائسته پرې ښکاري
مناسب نهٔ دي چې بَش ئې پهٔ اوګه شي

هغه تور چې د تهمت شي پهٔ چا پورې
پاکېدل ئې بيا **توراجه** پهٔ جرګه شي

# غزل

بُوره مېښه کله پېۍ کړي بې وندې
خر وړے نۀ شي هر ګز د اوښ اندې†

تاچې غوښې له خانک راوړو مېړمنې
صبر اوکړه حلال نۀ دے لا لندې

زوړ پېزار پۀ شان د نوي پېزار نۀ شي
کۀ هزار ځله ئې وينځې يا ګندې

شنډې ونې نه ثمر کله پرېوځي
کۀ پۀ لخته ئې تمامه ورځ څندې

کوم عمل چې څوک زباتي اجر ئې نۀ وي
د سکرو د اور نه نۀ ځي غرغندې

يو مالدار ته خداے دې اوبخښه څوک نۀ وئ
کۀ پۀ قبر ورله ودروې جهندې

نۀ د مړو سره ژوند کيږي **توراجه**
نۀ څوک مړۀ خښىۍ پۀ سر د برندې

---

†دا لفظ پۀ اصل کښې انډے دے خو د قافيې د مجبورۍ له وجې مو انډې کړو.

# غزل

غل وئ غلا دپاره شپه ده سحر نۀ
د منزل دپاره لاره ده غر نۀ

پۀ ړندو سترګو ځنګل ته ښکار له مۀ ځه
چې پۀ سپین مېدان دې لګي نظر نۀ

پۀ هغې اوبو ګمان د درياب مۀ کړه
چې پکښې شګې موندے شي جوهر نۀ

قرض مال پۀ ډېر هنر وصولېدے شي
دوستانه پۀ خوږه خلۀ شي پۀ شر نۀ

د هغې عشق او مينې څۀ مطلب شو
چې مخلوق ترې نه خبر وي دلبر نۀ

زۀ **توراج** يمه صادق منافق نۀ يم
صادقانو له جنت وي سقر نۀ

# غزل

چې خوږه شي ځار شه لعل جوهر د ژبې
چې ترخه شي عجيبه خطر د ژبې

دغه ژبه د بدن لګه ټوکړه ده
ټول وجود لره کافي ضرر د ژبې

دوه هاتيان چې جنګ شروع کړي اخر خلاص شي
نۀ خلاصيږي چې شروع شي شر د ژبې

منصور وخېژوۀ خپلې ژبې دار ته
چې پۀ دار شو دا ئې وۀ اثر د ژبې

ښۀ سړے د هر سړي خوښ وي **توراجه**
پۀ خلوص پېدا شي سيم و زر د ژبې

# غزل

ستا پۀ خندا کښې د جفا نخښه ده
زما ژړا کښې د وفا نخښه ده

دا سپک کاتۀ د رسوایۍ اسباب وي
کبر غرور خو د ګناه نخښه ده

پۀ مظلومانو باندې ظلم کول
د غرقېدو دغه صفا نخښه ده

د نېکو نېک د بدو بده برخه
د نېک عمل ثومره اعلیٰ نخښه ده

تۀ چې د بل نه غواړې ناز او ادا
پۀ تا کښې کومه د ادا نخښه ده

رنځور چې ومومي پۀ شپه کښې قرار
مخلوقه هاغه د سبا نخښه ده

**توراجه** ستا د خلې ساده غزلې
دا د پښتو هغه پخوا نخښه ده

# غزل

چې کم عقلو سره نن ئې پهٔ خندا ناست
سترګې سرې به ئې سبا له پهٔ ژړا ناست

پهٔ خوره زمکه کښې ګل نهٔ زرغونېږي
بې وفا ته ئې پهٔ طمع د وفا ناست

پهٔ ګاونډ چې د کم اصلو شریک نهٔ شې
سرو غرمو ته کهٔ ئې خبر دے پهٔ بېدیا ناست

غم ته شا چې د بې ننګو پهٔ ډاډ نهٔ کړې
یک تنها به ئې پهٔ طمع وار خطا ناست

چې پردي راوړي کور ته ننباسې
یوه ورځ به ئې پهٔ خپل قام کښې رسوا ناست

هغه کار پهٔ دنیا مهٔ کوه **توراجه**
ملامته چې پهٔ مینځ کښې د دنیا ناست

## غزل

تل د یار د لوري تکلیفونه دي راځي راځي
یار چې پرې خوشحاله وي دردونه دي راځي راځي

مینه کۀ اسانه وے نو هر چا به کؤلے بیا
زۀ چې مینه کړم پکښې سوچونه دي راځي راځي

نشته دے پرواه زما ، د صبر پهلوان یمه
خبر دے پۀ دلو دلو غمونه دي راځي راځي

کلک شه اے زړګیه چې ونۀ چوې یار جفا کوي
ووایه پۀ جار چې افسوسونه دي راځي راځي

زۀ لکه یتیم یمه مخلوقه د ژړا عادت
رنګ پۀ رنګ د ظلم دورانونه دي راځي راځي

نوم زما **توراج** دے پۀ سر تاج د محبت لرم
**ګل** سره ازغي وي تهمتونه دي راځي راځي

# غزل

د یار جهونپړۍ به پۀ ماڼۍ د چا بدله نۀ کړم
حساب به ئې کمه د شاهانو د محله نۀ کړم

د یار پۀ در کښې شا بربنډه پۀ ازغو څملمه
عاشق پۀ څۀ شوم چې ئې غوره د بخمله نۀ کړم

زړۀ مې بهلول دے پۀ لمسون د چا غولېږي کله
صادقه مینه به رسوا چرې پخپله نۀ کړم

د یار تهمت خو مشَدۍ زما پۀ سر پرته ده
دا مشَدۍ به د رقیب د خپې چپله نۀ کړم

چې د رقیب لمسه منم پکښې فائده مې څۀ ده
ځان به پۀ زور د ډېرانۀ د سر خځله نۀ کړم

کۀ نقادان مې تنقیدونه پۀ اشعارو کوي
خپله زړه جذبه به ورکه د غزله نۀ کړم

دا زۀ **توراج** څۀ له د یار سره جوړه ګرځمه
کۀ وخت پوره شو اشنا خلاص به د اجله نۀ کړم

# غزل

اور د محبت مې د زړګي پۀ دنيا بل شولو
ځکه مې د مخ رونق پۀ دې دنيا بدل شولو

خيژي اسويلي زما د خلې نه د سلګو پۀ ځائے
غم چې د حسين اشنا پرون راسره مل شولو

راغلل دا بې شماره تهمتونه شو پۀ ما دلۍ
هار لکه د ګلو مې پۀ غاړه مکمل شولو

پروت د يار پۀ در کښې شا بربنډه پۀ ازغو يمه
چاته به ازغي ښکاري خو مالره بخمل شولو

زۀ د يار پۀ عشق کښې د وطن شړلے خوښ يمه
خبر کۀ د مجنون غوندې مې عمر پۀ ځنګل شولو

مومي به مئين زړونه قرار زما پۀ دې غزل
هر يو سوي زړۀ لره مرهم مې دا غزل شولو

نوم زما **توراج** دے پۀ رواج د عشق پوهه شوم
سرومال ببلم اشنا ګټم پۀ رب توکل شولو

# غزل[‡]

دا حياداري سترګې ستا دي ياره
سرې ناغه دارې سترګې ستا دي ياره

تازه تازه کاتۀ اثر لري ستا
زينت حقدارې سترګې ستا دي ياره

خندنۍ سترګې دي کړې چاته کږې
کږې ايسارې سترګې ستا دي ياره

قرار زړګے ئې راله کۀ ناقرار
څۀ دل ازارې سترګې ستا دي ياره

چې قاصد درشي دا رتې ئې څۀ له
جنګ ته تيارې سترګې ستا دي ياره

راشه ديدن له دې **خاکسار** راغلے
ډېرې يادګارې سترګې ستا دي ياره

[‡] پۀ دې غزل کښې شونډې نۀ لګي.

# غزل

پۀ سپین مخ دې تار پۀ تار کړه زلفان ورو ورو
پۀ یو نیم سلائي تور کړه چشمان ورو ورو

محبت صرف پۀ سوال کېدلے نۀ شي
پۀ ترتیب پکښې پکار وي تاوان ورو ورو

پۀ لمسون د غمازانو دهوکه نۀ شې
رژوه مې د غمجن زړۀ ارمان ورو ورو

معشوقه د خپل عاشق نه ګیلې نۀ کړي
خو غماز پکښې پېدا کړي خفګان ورو ورو

بې وقوف ته راز څرګند نۀ کړې **توراجه**
عاقلانو ته کړه خبر دے بیان ورو ورو

## غزل

پۀ دولت چې څوک مئين وي عزت څۀ کړي؟
پۀ عزت چې څوک مئين وي دولت څۀ کړي؟

سود پرست سړے د زيان مېدان له نۀ ځي
د قارون غوندې د خدائے پۀ رحمت څۀ کړي؟

سخاوت د بنياګانو عادت نۀ دے
هندو ځان سيزي پۀ اور خو جنت څۀ کړي؟

محبت د ننګيالو د زړۀ مشال دے
چې بې ننګه شي هغه محبت څۀ کړي؟

لېونى پښې ابله پښې سرتور سرونه
پۀ خپل غم کښې مبتلا وي راحت څۀ کړي؟

حقيقت بيان کوې **توراجه** چاته؟
نادانان غواړي مجاز حقيقت څۀ کړي؟

## غزل

زما زړګے د وفا ډک دے بې وفا دې نۀ شي
جفا کول بې وفائي عادت زما دې نۀ شي

زۀ چې پۀ کوم محفل کښې يم هلته دې مينه وي تل
د زور او جبر د ستم وختونه را دې نۀ شي

چې پۀ رښتينې محبت وي رب دې نۀ لنډوي
صادقه مينه دې کاميابه وي رسوا دې نۀ شي

چې دوه مئين پکښې يو ځائے شي راز د مينې کوي
د وصال شپه تر مړېدو پورې سبا دې نۀ شي

ښائست خو خدا ے ورکړو غرور پرې ښکلي څۀ له کوي
پۀ غرور ناک بشر نيازبين زړونه شېدا دې نۀ شي

ديدن د سر پۀ بدله دے چې محنت وکړي څوک
هر حق پرست پۀ ځا ے د حق کښې وار خطا دې نۀ شي

**توراج خاکسار** چې د کوم يار فرمانبرداره ګرځي
ورځ پۀ محشر کښې د هغې ياره جدا دې نۀ شي

# غزل

ښنګه چې باد د ګړنګونو پۀ سر نۀ اودرېږي
داسې خولې هم د خالونو پۀ سر نۀ اودرېږي

زما د خلې سلام پرې وایه خبر دے نۀ دې قبلئ
خبر دے اوبۀ د دنګو غرونو پۀ سر نۀ اودرېږي

چې طوفانونه پرې راځي ښانګې ئې زمکې له ځي
ځکه خو پرخه د ګلونو پۀ سر نۀ اودرېږي

چې به ئې کاروان راوېښوۀ د سبائې نه مخکښې
هغه چرګان د دېوالونو پۀ سر نۀ اودرېږي

د پېرنګي زندان مې پېغله د وطن اوخوړه
دغه خفګان د چا د زړونو پۀ سر نۀ اودرېږي

خالقه ستا د قدرتونو لارې چا اونیوې
زمونږه اوښکې د مخونو پۀ سر نۀ اودرېږي

کاتبه څه چې پۀ لیکلو مې بې وسه شولې
د **توراج** ژبه د شعرونو پۀ سر نۀ اودرېږي

# غزل

پهٔ سپین مخ دې کړه خوارهٔ زلفان تازه
قط پهٔ قط پکښې تومبې ګلان تازه

پهٔ لنډۍ زنه دې خال د رنجو بس وهٔ
لا پهٔ پانو دې کړل سرهٔ لبان تازه

تا چې جوړ کړو ځان زما د مرګ دپاره
پهٔ کجلو دې کړل تور چشمان تازه

چې زما د قصده وخاندې رقیب ته
درنه نور مې شي پېدا خفګان تازه

تهٔ زما دې سوي حال ته نظر وکړه
ګرځؤم پهٔ اوښکو لوند ګرېوان تازه

دا اباد جهان به وي به نهٔ وي **توراج**
خوند به درنکړي بیا **بل** جانان تازه

# غزل

پهٔ تېر ساعت پسې وختونو هډو اونهٔ ژړل
دې بې وفا میاشتو کلونو هډو اونهٔ ژړل

چې پهٔ ګلونو به ئې اوچې زمکې تاندې کړلې
هغې سپرلو پسې دشتونو هډو اونهٔ ژړل

د سور پېزوان او سور چارګل او شنو خالونو ښائست
دؤر ئې تېر شو خو مخونو هډو اونهٔ ژړل

چې به مدام د ګلو ډک وۀ اوس ئې خاورې خوراک
پهٔ تور اوربل پسې ګلونو هډو اونهٔ ژړل

چې ګودرونه پرې ښائسته وو یاره هغه پېغلې
خاورو له لاړې ګودرونو هډو اونهٔ ژړل

غتې خلقې جګې شملې درانهٔ خوارۀ مشران
پسې حجرو او محفلونو هډو اونهٔ ژړل

**توراجه** ستا پهٔ جنازه پسې به وژاړي څوک
مینې ترې ختمې شولې زړونو هډو اونهٔ ژړل

## غزل

ښائست د مخ مې کمېدۀ پۀ پته پوهه نۀ شوم
اوربل مې ورو ورو سپينېدۀ پۀ پته پوهه نۀ شوم

د ماشومانو لوبې ټوقې وې کنه عالمه
کله کوېږدن کله وادۀ پۀ پته پوهه نۀ شوم

ما وې چې ژمے دے چې اوړے شي نو سبل له به ځم
دوران مې ورو ورو تېرېدۀ پۀ پته پوهه نۀ شوم

دا نن پرون وے پرون نن وے پرونۍ ورځ ښۀ وه
جانان زما نه ځارېدۀ پۀ پته پوهه نۀ شوم

زما سندرې زما خيال او زما شونډې مسکۍ
زما ځوانې د خوب ليدۀ پۀ پته پوهه نۀ شوم

هغه **توراج** چې به ئې تخم د ګلونو غورځؤ
پرون پۀ خپله غورځېدۀ پۀ پته پوهه نۀ شوم

# غزل

جانانه ماته دې نا اشنا کړلې اشنا سترګې
سترګو دې هېرې کړې پهٔ څهٔ وجه زما سترګې؟

ماپسې خلې د مخلوق وازې شولې ستا پهٔ وجه
تاپسې مهٔ شه د مخلوق او د دنیا سترګې

د غریو نیولو سترګو رنګ پهٔ خندا نهٔ بدلیږي
نهٔ غلطیږي د خندا او د ژړا سترګې

سترګې پهٔ کوم طرف کږې کړم چاته اوګورمه
د خاورو لاندې شوې د ناز او د ادا سترګې

زما پېغام دې د ماښام ترغونیٔ اوګڼله
ځکه دې واړولې قاصد ته وار خطا سترګې

بخشش کوه نهٔ لګي پته د راتلونکي سبا
**توراج** ته برندې برندې ګوري د عقبا سترګې

# غزل

راشي دانشور چې ځي درانهٔ پهٔ چپه خلهٔ پاڅي
ډله د کم عقلو جرګه بې رټلې نهٔ پاڅي

ښار دے کهٔ مېره ده خو ترخې خبرې شر له ځي
مخه چې د شر نيسي هغې پسې جرګه پاڅي

رنګ د تعصب چې پکښې وځليږي هرکله
هغه محفلونو نه اکثر د بنده زړهٔ پاڅي

ستاسو ښار ته راشي کهٔ زمونږه د نخترو باد
بيا به ددې ښار پېغلې بې غږه پهٔ ښکالهٔ پاڅي

اور دې پهٔ ښائست ولږه مور دې څوکيداره شوه
پرخه به د ګل نه د دېوال پهٔ سيورې څهٔ پاڅي

راشه لوپټه راته لوګے کړه د نظره شوم
داسې صدقه باندې ژوندي څهٔ کے چې مړهٔ پاڅي

ببره د ببو د کور زمونږ پهٔ کور راګوره ده
نمر زمونږ د غولي مینځ له راشي چې تیارهٔ پاځي

سر چې بره وي ښکته پهٔ پښو کښې تندر نهٔ لګي
سترګې هله وغړېږي مخکښې چې بانهٔ پاځي

خوب کوې **توراجه** د اخر برخه دې ورکه شوه
تهٔ جوړې فاسق شوې بزرګان پهٔ نیمه شپه پاځي

## غزل

پېغلې چې پهٔ کور شوې د ګودر د سبله پاتې شوې
هېر ترې بانېي چغ شو د اختر د سبله پاتې شوې

ناستې دي بنګلو کښې د موبائل سره مشغولې دي
ځکه د چینار، چینې ، نختر د سبله پاتې شوې

اور شو جینکو پورې د سیمې سالانه چکر
تلې د رور پهٔ جنج د هشتنغر د سبله پاتې شوې

ښار د پښتنو د فېرنګي بارودو وجړقؤ
نهٔ ځي قافلې د پېښور د سبله پاتې شوې

ډېره موده اوشوه پهٔ نظر د هیچا نهٔ راځي
زانېې د کابل او د خېبر د سبله پاتې شوې

مونږ به چې تپوس کوهٔ **توراجه** تهٔ به نهٔ وې کور
ښهٔ ده چې بوډا شوې چې د غر د سبله پاتې شوې

## غزل

خوږ زبان وي تريخ زوزان شي په پيرۍ کښې
تل محتاجه هر انسان شي په پيرۍ کښې

د ځوانۍ په وخت د وخت نه فائده واخله
چې خېرازه دې دوران شي په پيرۍ کښې

ناداني په ځلميتوب کښې څۀ عېب نۀ دے
بد هغه وي چې نادان شي په پيرۍ کښې

په ځوانۍ کښې کۀ څوک هر څۀ هر څۀ اوکړي
افسوس اوکړي بيا لقمان شي په پيرۍ کښې

نۀ به سپين وېښتۀ په ږېرته د چا تور شي
نۀ به بيا چرې څوک ځوان شي په پيرۍ کښې

په خپل زور قوت غرور مۀ کړه **توراجه**
هسې نۀ چې دې کار وران شي په پيرۍ کښې

# غزل

پېغمبر کړې پۀ محشر رهبر زما
شي پۀ مخکښې به اسان سفر زما

زۀ به ښنګه خوشحالي او خندا اوکړم
د ګناه پېټې چې پروت پۀ سر زما

دنيا ځائے د همېشه اوسېدو نۀ دے
يو ځل رابه شي د تلو نمبر زما

ماله دغه خوشحالي پۀ محشر بس دے
چې ساقي وي پۀ کوثر دلبر زما

زۀ **توراج** پۀ قول ، **فعل** سادګي کړم
هر انداز الفاظ دے **لعل** جوهر زما

# غزل

**محفل** د لېونو کښې لېونى خبرې کيږي
پهٔ خلهٔ د سپلانيانو سپلانى خبرې کيږي

مېلس کښې د ځوانانو بوډاګان کله ځائيږي
**خفه** شي بوډاګان چې د ځوانى خبرې کيږي

ښهٔ خلهٔ د غريب بنده د نېستى پهٔ معرفت شي
غريب شي هلته چپ چې د خانى خبرې کيږي

رونق د زمانې بدل بدل عالم بدل شو
پهٔ خړو وطنو کښې پخوانى خبرې کيږي

قاصده ښپه نيولے شه خوږې راباندې لګي
**محفل** کهٔ ننئے دے پرونى خبرې کيږي

پهٔ نورو ښاريو کښې مينه مينه خنداګانې
پهٔ ملک د پښتنو د دشمنى خبرې کيږي

**توراج** وائي ګنده شوه معاشره پهٔ دغه وجه
مدام چې د حسد او تربګنى خبرې کيږي

# غزل

چې غرور او تکبر د چا روزګار شي
د هغۀ مثال د ګرد او د غبار شي

ګرد غبار د هواګانو مخکښې زغلي
حېثيت ئې د يو نۀ څيز پۀ مقدار شي

پۀ ډنګر مينه کوه فائده به مومې
بې وفا سره دوستي خدمت د مار شي

د کم اصلو د ياری مثال دے داسې
لکه څوک د ګنګوټانو خدمتګار شي

چې د يار د لاسه زهر اوخوري اوڅکي
سړے هله د لقمان غوندې هوښيار شي

تجربه يو مرتبه ګڼه **توراجه**
تجربه چې د چا نۀ وي خندۀ و خار شي

# غزل

هوښیاري او ماهري دواړه یو ثیز دے
بهادري او سرزوري دواړه یو ثیز دے

چې تمام عمر د بل پۀ حکم زغلي
غلامي او نوکري دواړه یو ثیز دے

چې پۀ چل د ستهکي اوزار تیار کړي
لوهاري او سونیاري دواړه یو ثیز دے

چې تاوان پکښې سره د ګناه مومي
لوفري او جواري دواړه یو ثیز دے

تفاوت پۀ بعضې کار کښې دومره نۀ وي
مالیاري او کاشتکاري دواړه یو ثیز دے

تور به سپین کړي سپین به تور کړي پۀ لغاتو
شاعري او ګل کاري دواړه یو ثیز دے

زۀ **توراج خاکسار** د نېکو خلقو یار یم
نېک کاري او خاکساري دواړه یو ثیز دے

# غزل

خزې چې يو ځائے شي پښتانۀ خبرې ډېرې کئ
دوي د پېغلتوب او د ځوانۍ خبرې ډېرې کئ

مونږ به د فلانکي کره پهٔ ټال باندې ځانګل خورې
دغه لېونيانې لېونۍ خبرې ډېرې کئ

سمه تماشه وي چې وادهٔ ښادۍ له لاړې شي
ستائي خپل زاړهٔ سل کلنۍ خبرې ډېرې کئ

ډېره ډوډۍ وخوري بيا وئ مونږه څهٔ خوړلي دي
نهٔ مړېږي دوي د بې ايمانۍ خبرې ډېرې کئ

ډلې ډلې کېږي د ښادۍ د کوره ووځي چې
يو بل ته پهٔ لار د شيطانۍ خبرې ډېرې کئ

دا ناقِص العقل قوم **توراجه** د چا نهٔ مني
خوښ ئې وي فساد د دشمنۍ خبرې ډېرې کئ

# غزل

يو چغه يو اواز جوړ شي اکثر د پښتنو
د اور او د اوبو مثال لښکر د پښتنو

پۀ سرو سکروټو خيژي ننګيالي زمونږ د کلو
پۀ بد طرف دې تاؤ نۀ شي نظر د پښتنو

پۀ اوچو غنو ملاسته به ترې سل ځله بهتر وي
الله دې څوک وانۀ ړوي پۀ شر د پښتنو

يريږي ترې نه غر چې چرته ما ته اور کښېنۀ دي
اکثر جګړه جوړه شي پۀ غر د پښتنو

ځانونه پرې وژلي پښتنو تاريخ ګواه دے
چې چا پناه اخستې ده پۀ در د پښتنو

کۀ چاڼ کړې کائنات پۀ مخلوقاتو پسې ګرځې
پۀ مينه کښې څوک نشته برابر د پښتنو

**توراج** وائي جذبات د پښتنو دغسې اوکړي
د زړۀ رازونه هم اوځي بهر د پښتنو

# غزل

کۀ پۀ کور ئې د سرو زرو باران اوشي
خو د بعضې کس به سترګې مړې نۀ شي

غل د غلا نه نۀ صبرېږي کۀ بادشاه وي
پاړوګان د منګرو د لاسه مړۀ شي

کۀ د سرو زرو کنډول د زهرو ډک کړې
نۀ به شات نۀ به نبات نۀ به اوبۀ شي

نغاره شي نظاره شي پۀ عالم کښې
چې د زړۀ خبره هر کله پۀ خلۀ شي

صبر ښۀ وي خو تر وسه او تر حده
اخر وځاځي چې اوښکه پۀ لېمۀ شي

د **توراج** خاکسار ساده خبرې
غم ښۀ نۀ وي کۀ پۀ زړۀ کۀ پۀ کالۀ شي

## غزل

څوک چې وکړي د الله پۀ قرآن کبر
لکه وکړي چې پۀ عرش او ميزان کبر

کۀ پۀ ما کبر کوې جانانه خبر دے
همېشه کړي پۀ عاشقو خوبان کبر

چې هر څوک کبر کوي فخر پرې هم کړي
اخر وارېږي پۀ هغه انسان کبر

څوک به څۀ ګيله د نورو خلقو اوکړي
پۀ ګلونو چې کوي بُلبلان کبر

زۀ **توراج** همېشه دا سوال او دعا کړم
ربه وا مۀ ړے پۀ ما د ايمان کبر

## غزل

بس یو الله دے چې قائم دے همېشه پۀ یو حال
پۀ غرونو راشي د سوکړو او د اورونو زوال

د دریابونو چینې هم اوچې شي زور ئې کنبیني
شمس هم رڼا تته کړي ، تت ښکارېږي ، تت شي هلال

څوک پۀ محل کنبې د رېښمو پۀ بستر اوده وي
پۀ چا راځي راپرېوځي ګوڼ خوړلے چوپال

د چا د کور لارې کوڅې وي پۀ ماربلو پخې
د چا د کور د پنايې نۀ وي د خټو دېوال

څوک لېونے شلېدلې غاړه ببر سر منډې وئ
څوک دانشور د زمانې کړي ورله ورکړي کمال

څوک د پُلاؤ مجمې پۀ لتو وهي مخ ترې اړئ
**توراجه** څوک سره روټۍ غواړي د بل نه پۀ سوال

# غزل

چې د سر شال ئې پهٔ خالونو پرېوځي
لکه چې تندر پهٔ ګلونو پرېوځي

دا پهٔ بلىَ ئې سرهٔ لاسونه اېښي
کهٔ سرې لمبې پهٔ دېوالونو پرېوځي

باد ئې اوربل پهٔ اننګو خوروي
کهٔ تور پتنګ پهٔ مشالونو پرېوځي

پهٔ سر ئې سپينه لوپټه رپيږي
کهٔ سپينه واوره ده پهٔ غرونو پرېوځي

بام ته چې ګوري ګام ته پام نهٔ کوي
هغه اکثر د ګړنګونو پرېوځي

چې ننګ او پت نهٔ پالي سود پسې ځي
هغه ملګري د خيالونو پرېوځي

حسن پرست زړګي برباد کړو **توراج**
اثر ئې ځکه پهٔ شعرونو پرېوځي

**قطعه**

پۀ خپله خوښه چې شپېه باران وروڵے نۀ شي
وريځې ستا د کلرونو صفت څۀ له اوکړم

ما اورېدلي چې فردوس د عابدانو ځائے دے
زۀ ګنهنګار طمع د هغه جنت څۀ له اوکړم

**قطعه**

د ګلو لخته د سبا پۀ پرخه نۀ کرېږي
څو چې پخپلو سرو غوټو باندې سمسوره نۀ وي

د تاريخ پاڼه ده د هر مشر د خلې خبره
کنډرې نۀ کيږي چې غل د چا د کوره نۀ وي

## قطعه

سیورے مې پهٔ کاڼو باندې مهٔ اوله
چرته به اختر کښې درته غاړه شم

چک دې راله خال پهٔ اننګي وران کړو
څهٔ به وېمه مور ته چې اوس لاړه شم

## قطعه

دلته د وَس خلق د خبر طرف ته ګام ناخلي
بې وسه شته خو څوک ئې خبر خېرات کښې نام ناخلي

دلته د وخت پهٔ فرعونانو د چا وَس نهٔ رسي
د چا چې وَس رسي هغه ترې انتقام ناخلي

## غزل

د پښتونخوا د مېړنو لارې به څوک اونيسي
د دين اسلام د ننګيالو لارې به څوک اونيسي

څوک چې ځان وژني د لښکرو نه مخ نۀ اړوي
سر چې پرې ږدي د لېونو لارې به څوک اونيسي

مالک د عرش پۀ موسمونو کښې بدلون راولي
د بهارونو پسرلو لارې به څوک اونيسي

لا خو خالد بن وليد د ياده وتے نۀ دے
د دين سر تېرو د جذبو لارې به څوک اونيسي

د زمانې پۀ ابرها د زوال غږ خو اوکړئ
د ابابيلو د حملو لارې به څوک اونيسي

د جنګ بدر د تاريخ پاڼې لا ورکې نۀ دي
د ملائېکو د راتلو لارې به څوک اونيسي

**توراجه** زر به راوړي رنګ د شهداؤ وينې
د رب جليل د فېصلو لارې به څوک اونيسي

## غزل

هغه چې تلي هغه دې عالم ته نۀ راځي اوس
باد شوې خاورې دي ، واپس قدم ته نۀ راځي اوس

هغه شلېدلې لوپټه اوس د ګلونو شال شو
ببو پۀ سر کړو د خوارانو چم ته نۀ راځي اوس

زما د مرګ زېرے پرې اوکړئ چې خوشحاله شي يار
د خندا ډکه خلۀ زما ماتم ته نۀ راځي اوس

پۀ تېر ساعت پسې اکثر منګولې مروړي مچان
شات ئې خوراک شو د چشمانو نم ته نۀ راځي اوس

**توراج** پۀ خپله ګناه نۀ پوهېږي اووايه څار
ولې دې خيال زما د زړۀ حرم ته نۀ راځي اوس

# غزل

ختم شو پۀ هر وطن عزت پۀ تهوقو تهوقو کښې
لاړو د هر چا نه شرافت پۀ تهوقو تهوقو کښې

بد ، دهوکه ، فرېب اوسنے خلق سیاست ګڼي
خور پۀ هر یو کور شو سیاست پۀ تهوقو تهوقو کښې

زور منافقت شو درغلي د هر چا خوښه ده
ختم درغلۍ کړو صداقت پۀ تهوقو تهوقو کښې

ډېر شو مال دولت خو پۀ حرامو خلقو جمع کړو
پورته شو ترې څکه برکت پۀ تهوقو تهوقو کښې

لاړه پښتو لاړه د حیا وختونه ختم شو
هېر کړو اوسنو خلقو غېرت پۀ تهوقو تهوقو کښې

څوک چې د خپل شرم او حیا عزت پرواه نۀ کړي
اوګټو هغې خلقو دولت پۀ تهوقو تهوقو کښې

ډېر ئې هسې اوري عاقلان به ترې مطلب اخلي
ودې وې **توراجه** حقیقت پۀ تهوقو تهوقو کښې

# غزل

پۀ ګلونو کۀ خزان د ګلزار نۀ وے
بلبلان به همېشه پۀ چغار نۀ وے

معشوقو کۀ بې منته یاري کولے
عاشقانو به نیولے رېبار نۀ وے

هر عاشق به معشوقې سره **پخلا** وۀ
کۀ پۀ مېنځ کښې ئې رقیب **چغل** مار نۀ وے

دې رباب به بیا د خوند خبرې نۀ کړې
کۀ پۀ غېږ کښې د هوښیار استکار نۀ وے

زۀ به هره ورځ دیدن له د دلبر تلم
کۀ پۀ دام د بېلتانۀ کښې ایسار نۀ وے

ما به ولې همېشه ژړا فریاد کړو
کۀ مې سرې سترګې لیدلې د یار نۀ وے

غېبر غمازو به خندل درپورې ولې
بې وفا کۀ دې **توراجه** دلدار نۀ وے

## غزل

ډېر زما پۀ مخکښې د مخونو حال بدل شو
وينمه اکثر چې د وختونو حال بدل شو

زړونه د صادقو مينو ډک وو مينه مينه وه
اوس خو ميني نشته دے د زړونو حال بدل شو

وخت کښې د مېوو به خلق غرونو ته مېوو له تلل
سمو ته مېوې راغلې د غرونو حال بدل شو

تل به د ورخاړو کتهوی ګل پۀ دېوالونو وې
جوړې شوې بنګلې د دېوالونو حال بدل شو

اوس خو صحراګانې د سکون مقام ګڼلے شي
تور شو پۀ لوګو د محلونو حال بدل شو

زۀ **توراج** به ولې خفه نۀ يمه دا څۀ اوشو
شاړې شوې حجرې د محفلونو حال بدل شو

## غزل

پۀ کلي کور کښې بدنامېږي پښتنې جینکۍ
زۀ وېم چې ولې رسوا کېږي پښتنې جینکۍ

موبائل د ملک د جینکو د مرګ سبب جوړ شو
د ورور او پلار پۀ لاس قتلېږي پښتنې جینکۍ

داسې خو سپي څوک د کمر نه ښکته نۀ غورځوي
څنګ چې کمرو نه غورځېږي پښتنې جینکۍ

یا خو ئې مړه کړي یا ئې ورکه کړي د خپل کلي نه
اکثر ښارونو کښې خرڅېږي پښتنې جینکۍ

زمونږ د ملک د خونړي نظام به څۀ صفت کړم
لکه د چرګو حلالېږي پښتنې جینکۍ

دا کوم قانون دے کوم انصاف دے مظلومانو سره
چې د حصو نه محرومېږي پښتنې جینکۍ

مړے ئې ورور اوکړي او خور ورله سوره کښې ورکړي
خالقه دې له پېدا کیږي پښتنې جینکۍ؟

قاتله تۀ چې ددې کوم رب نه جنت غواړې
سبا به دې رب ته ژړیږي پښتنې جینکۍ

رب به قاضي وي د ذرې ذرې حساب به کیږي
کریم الله ته به پېش کیږي پښتنې جینکۍ

د جهالت تورې تیارې **توراجه** ورکې نۀ شوې
چې راخوریږي ترې ویریږي پښتنې جینکۍ

# غزل

خاورې خو ئې خاورې کړم خو پښې راباندې څۀ له ږدي
خلق پښې د قبر د ډېرې دپاسه نۀ کېږدي

ټول عالم پۀ اوښکو ژاړي ما پۀ وينو اوژړل
خود پۀ وينو ژاړي پۀ بې ننګو چې څوک زړۀ کېږدي

مۀ وايه چې چپ شه زړۀ مې ژاړي څنګه چپ شمه
هله به شم چپ چې عزرائيل مې لاس پۀ خلۀ کېږدي

اوښکې مې پۀ چپه خلۀ د زړۀ رازونه وستائي
اوبهېږي وڅاڅي چهاپونه پۀ لبمۀ کېږدي

زړۀ نادان مې غواړي هغه تېر وختونه تېر عمر
وتې جنازه به قدم څۀ رنګه پۀ ورۀ کېږدي

څۀ اوکړي **توراج** خپلې نبکۍ پرې تهمت پورې کړو
بې بدو بدنام شو پۀ بدنام به زړۀ څوک څۀ کېږدي

## غزل

د امن زنځیرونه د ستم پۀ چړو شلېږي
چې چرته وي ګلونه هلته سرې لمبې بلېږي

د خان ساتلي سپي باندې څوک ډز کؤلے نۀ شي
زمونږ د دروازو دننه هر څۀ تالا کېږي

منم چې هتکړۍ شته خو د خوارو لاس ته لګي
قانون هم دلته شته خو پۀ پېسو باندې بدلېږي

زمونږه د ملت هره کوڅه قصاب خانه شوه
بې وسه مظلومان لکه د چرګو حلالېږي

د دغې خونړي نظام به څۀ ستائېنه اوکړم
زمونږ د توپخانو ګولۍ پۀ مونږ باندې سړېږي

خالق د کائنات هم د قدرت پۀ سترګو ګوري
کاسې د کبر ډکې شوې چې کله به توئېږي

پرده د سنېما ده شاته ئې سرهٔ اورونه بل دي
ددې خاورې سرتور لېوني هم په دې پوهېږي

د ظلم انتها ده انتها ته رسېدلې
شپېلۍ د اسرافيل خالقه کله به غږېږي

**توراجه** بس په دغې فېصله ده نور څهٔ نهٔ وېم
دا وينه د پښتون ده په ډالرو چې خرسېږي

# غزل

د چا پۀ کلي کښې منګے او ګودر پاتې نۀ شو
د چا پۀ چم کښې د يادونو کنډر پاتې نۀ شو

زما پۀ کلي کښې منګے او ګودر هغسې دے
اختر راځي خو پکښې خوند د اختر پاتې نۀ شو

ذرې ذرې قطرې قطرې پۀ وينو سرۀ لاشونه
خو پښتنو نه پېښور او خېبر پاتې نۀ شو

چې د اغيار پۀ سترګو ښۀ نۀ لګي داسې ګل دے
نوم ئې کوکنار دے چې پۀ سمه او غر پاتې نۀ شو

چې پرې د يار د مخ او ګل د مخ پېچان کېدلو
پۀ هغه سترګو کښې طاقت د نظر پاتې نۀ شو

چې به ئې خفه زړونه خوشحاله کړل پۀ تشه خندا
اوس د خوبانو خلۀ کښې هغه اثر پاتې نۀ شو

آئينه خړه شوه کۀ زۀ د زوال نخښه شومه
چې پۀ وطن کښې مې د لارې رهبر پاتې نۀ شو

وائي **توراج** چې اوس به څۀ ذخيره جوړه کړمه
امن مې ورک شو څوکيدار مې د ور پاتې نۀ شو

## غزل

هغه بلبل نۀ وي چې ګل وي د ګلزاره اوځي
ښکلي چې خپل کلے پرېږدي د څۀ دپاره اوځي

اسمان پۀ ګټو ویشتے نۀ شي دا متل شوے دے
د بسم الله اواز به څنګه د ستاره اوځي

مالدار د هر کلي د سیمې د جرګو مشر وي
غریب سړے اکثر پۀ خپل چم کښې د شماره اوځي

مثال د هغه چا قائم شي چې همت نۀ بائېلي
د کار سړے چې همت اوبائېلي د کاره اوځي

هرګز دولت او غربت نۀ پټېږي پته ئې لګي
د بچو پلار وي خو خالي لاس د بازاره اوځي

څۀ خو به وي چې پۀ ازغنو لارو تګ کؤمه
هسې به څنګه څوک پۀ خبر صلاح د ښاره اوځي

الله د شاه او د ګدا هډو پرواه نۀ کوي
د بادشاهانو جنازې هم د درباره اوځي

ما وې چې هر امير دې هر فقير له مينه ورکړي
ډېرو وې نه **توراچه** دا به ملک کښې لاره اوځي

## غزل

مهٔ څه پښې بربنډې د انګار او د ازغو پهٔ سر
نهٔ جوړيږي کلي د هوا او د اوبو پهٔ سر

چرته چې غربت وي هلته ټوله مينه مينه وي
شر او شدت کيږي د جائېداد او د پېسو پهٔ سر

خور اخلي پهٔ زور حصه د ورور نه پهٔ تاڼه تحصيل
ختمې وروروليـ شولې د پولو او پټو پهٔ سر

خوږ وي کلے کور خو د پېغور پهٔ وجه پاتې شي
ځان پښتانهٔ وژني د پېغور او د پښتو پهٔ سر

کوم ځائے چې د مشر او د کشر تميز نهٔ کيږي
هلته کښې مدام سرونه مات وي د وړو پهٔ سر

تېر شول داسې ډېر چې ئې پهٔ ډېرو ځان اوچت ګڼو
اوس ئې مرغيـ ناستې دي د قبر د خزو پهٔ سر

چاسره **توراجه** چې احساس د بل د اوښکو وي
اوښکې به ئې تل داسې بهيږي د بڼو پهٔ سر

# غزل

ملا نه د کرسۍ او سیاست خبرې اورمه
ربه زۀ به چا نه د عبرت خبرې اورمه

واعظ د جماعت هم پۀ ټپو سندرو سر شو
ما وې زۀ به ددۀ نه د جنت خبرې اورم

غرونه د جناتو شو ساحل د شمشتو شولو
د ښار د ښائستوو نه د نفرت خبرې اورمه

سپرلے زمونږ پۀ ډډه باندې نۀ راځي سوکړه ده
خزان خزان نعرې دي د ذلت خبرې اورمه

پرون چې ئې پۀ جام د مظلومانو وینې څښلې
هغې خلې نه به څنګه د شفقت خبرې اورمه

زمونږ پۀ خاوره راج د دهشت ګرد، سرمایه دارو
د خلو نه ئې مدام د بغاوت خبرې اورمه

**توراج** وائي تاریخ د لوږو تندو ژوندے شوے
د ملک پۀ هره سیمه د غربت خبرې اورمه

## غزل

تېر ئې شو دوران د تېرو ښکلو منظر اوګوره
څه کنه د خلو نه ئې څۀ خبر او خبر اوګوره

هر څۀ له زوال دے پۀ يو حال دے لايزال زما
اوچې شي چينې د دريابونو اکثر اوګوره

سوکه د غر دنګه وي خو هر څوک ترې پۀ ډډه څي
خوار عاجز امام پسې د کلي لښکر اوګوره

اور دے زورور خو سر ئې لاندې څۀ پرې باندې وي
چاته بلندي نصيب ده شمس او قمر اوګوره

کټ د جنازې پسې ژړا کيږي سندرې نۀ
اوږد دے سفر څان له د لارې رهبر اوګوره

ويخ دې کړه ضمير او تعصب د منځ نه لرې که
لږ خو راته ياره د احساس پۀ نظر اوګوره

شل ځله توراج خاکسار مبلمه کړه ستا پرې څۀ لګي
خورې سره روتۍ ورله شلېدلې بستر اوګوره

## غزل

بادشاهان کهٔ فقيران کهٔ اميران دي
دغه واړه د عقبا پهٔ لور روان دي

چې هر څوک وائي چې دا زمکه زما ده
پهٔ اسمان کښې فرښتې ورپورې خاندي

هغه مال چې سبا بل ته پاتې کيږي
نن سګه ورونه پرې يو بل سره وران دي

نادانان اکثر پردي عېبونه شماري
عاقلان پهٔ خپلو بدو نظر کاندي

د **توراج خاکسار** ساده ساده خبرې
دانشور د زمانې ورته حېران دي

# غزل

زما پرې ستا مینه ماتېږي تصویر څۀ له وړې
د رقیبانو خوا سرېږي تصویر څۀ له وړې

سبا به دې تصویر له دلته کښې لیدو له راځې
ځواني دې ورځ پۀ ورځ زړېږي تصویر څۀ له وړې

پۀ تېر ساعت پسې ارمان کړے دے ډېرو خلقو
لکه زعفران دې رنګ زیړېږي تصویر څۀ له وړې

چې د روتې ورے او خوب ورے وي مور شي اخر
د دیدن ورے نۀ مړېږي تصویر څۀ له وړې

ستا د کوڅې ورخاړي ګل شو ما ترې ولې شړې
دغه ګلونه به دوړېږي تصویر څۀ له وړې

سپوږمۍ د ببرې سر له راغله یاره راشه کنه
**توراج** تنها تنها ژړېږي تصویر څۀ له وړې

# غزل

د لېونۍ د زنې خال شومه ښائست مې ورک شو
د زوړ زړوکي پهٔ مثال شومه ښائست مې ورک شو

غربت مې اور پهٔ صفتونو باندې ولګوهٔ
د يو مزدور د کور دېوال شومه ښائست مې ورک شو

رنګيني شته خو زهٔ هغې اړخ ته تلے نهٔ شمه
بس د ډېران د بېرې ټال شومه ښائست مې ورک شو

لکه چې ونه اره کيږي يا څاروے حلال شي
داسې د وخت پهٔ تبغ حلال شومه ښائست مې ورک شو

چې نهٔ رکوع او نهٔ سجده پکښې قبليږي د چا
زهٔ هم هغه وخت د زوال شومه ښائست مې ورک شو

څنګ به مقبول شي ګداګر پهٔ کائنات کښې د رب
ګوته پهٔ خلهٔ پهٔ خپل سوال شومه ښائست مې ورک شو

ځواني خاني وه د **توراج** خو لاړه تېره شوله
اوس خړ سېلاب د پشکال شومه ښائست مې ورک شو

## غزل

زلزله کلے ورانوي قبرونه نهٔ ورانوي
مینه کهٔ ډېره شي خو بیا هم زړونه نهٔ ورانوي

پهٔ ما مئېنه دروغ مهٔ وایه راغلے نهٔ ئې
پرخه د شپې د چا د پښو پلونه نهٔ ورانوي

نرۍ پرۍ وه غونډه مونډه وه راښکته نهٔ شوه
بادِزمبور ئې د سپین مخ خالونه نهٔ ورانوي

ناکام پکار وي سوچ پکار وي د افسوس نه مخکښې
ناکام د امن توان لري کورونه نهٔ ورانوي

زر کهٔ زاړهٔ شي کهٔ وراستهٔ شي قیمت نهٔ غورځوي
باران پرې اوري خو د ګل رنګونه نهٔ ورانوي

مطلب مې دا دے ماله خپله سادګي ښه ده بس
د چا قلم دې د **توراج** لفظونه نهٔ ورانوي

## غزل

پوهېږم نهٔ چې راته ولې خفګان لارې نیسي
زهٔ پهٔ بهار پسې ځم ماته خزان لارې نیسي

چې مې د زړهٔ پهٔ کور کښې کور ورکړلو ناز مې پرې کړو
د مرګ دپاره راته هغه جانان لارې نیسي

دا یو رواج شو کهٔ نظام د زمانې بدل شو
چې د نېکۍ بدل کښې بدې یاران لارې نیسي

پخوا به ښکلو ته ساتلې خلقو لارې کوڅې
اوس د پېسو دپاره ګوره خوبان لارې نیسي

کلي کښې نهٔ پرېږدي څوک خوب ته د الفت لېوني
څهٔ اوکړي خود به د صحرا بیابان لارې نیسي

یو حېوان بل حېوان ته نهٔ نیسي **توراجه** لارې
ټوپک پهٔ لاس ولې انسان ته انسان لارې نیسي

## غزل

بلبل ته ګوره خاندي ګل ته د ازغو پۀ مينځ کښې
پتنګ لمبې ښکلوي سوزي د لمبو پۀ مينځ کښې

جانانه راشه چې بانهٔ درته لوګے کړمه زۀ
نن دې خندا وځلېده د اننګو پۀ مينځ کښې

هغه زړګے چې د اشنا پۀ جدايۍ خفه وي
نۀ خوشحالېږي د دنيا د تماشو پۀ مينځ کښې

ګوره صحرا ته د سرتورو لېونو ډکه ده
لېوني نۀ کوي استوګنه د بنګلو پۀ مينځ کښې

څوک ملامته ځان ګڼي نۀ، رسوائي نۀ مني
خود به مني چې ملامت شي د جرګو پۀ مينځ کښې

چاته د يار بوسه ازغي شي ښکلوے ئې نۀ شي
چا بختورو ته بوسه شي د اوګو پۀ مينځ کښې

**توراجه** ځان دې نابينا کړو دا پۀ تا څۀ اوشو
چې مصلحت کوې د لارو د کوڅو پۀ مينځ کښې

## غزل

ړوند به څنګه د بینا مقام ته رسي
ګډه کله د اس ټوپ او ګام ته رسي

نصیحت نۀ وائي دې ته چې دې مړ کړو
اشارې د نصیحت ناکام ته رسي

څوک آیات مبارکه پۀ شونډو ښکل کړي
د چا شونډې د شرابو جام ته رسي

داسې ده چې څۀ کرې هغه به رېبې
ډېر پۀ بدو چارو بد انجام ته رسي

نۀ اجل د چا معاف شوے نۀ به معاف شي
ازمري هم کله دام ته رسي

یوه شپه کۀ شي اوږده اخر سبا شي
اوږده ورځ هم عاقبت ماښام ته رسي

غلۀ د بوټو او د غرونو پناه کيږي
د ورخاړو کټوۍ ګوره بام ته رسي

بيا به نۀ وے چې دا څۀ دي او دا څۀ وئ
کۀ دې ذهن د **توراج** کلام ته رسي

# غزل

ړاندۀ څۀ کړي ښکلاګانې مشالونه
لیوني څۀ کړي سپرلي او اخترونه

بعضې وینه د بخښنې سبب جوړ شي
بعضې وینه شي نفرت او تهمتونه

رېحان زوړ شي خو نۀ پېړ شي او نۀ خور شي
انګور پټ کړي دېوالونه ، محلونه

د اوښانو پۀ شا ډېر سېلونه کیږي
لېکن نۀ تږوکۍ ورخاړي پرې ګلونه

د خټکو غرونو شنۀ سپېلنې وچ کړل
زما اوښکو دي شنۀ کړي ستا خالونه

د تیراه د بنګو پاڼې قیمتي شوې
زما مینې ماته جوړ کړل فسادونه

زر پۀ چپه خلۀ خپل ځان خرڅ کړي **توراجه**
آئینه پۀ خاموشۍ ستائي مخونه

## غزل

تعليم علم پېدا کئ دشمني ولې؟
ښکلي وژني د ديدن لېوني ولې؟

د خوبانو سره داسې نهٔ ښائيږي
پهٔ غرګو ولي سرتور لېوني ولې؟

بې وقوف د زمانې تاواني ښهٔ دے
دانشور شول دا اخر تاواني ولې؟

پهٔ باران باندې ګلونه زرغونيږي
زمونږ زمکه وچوي سپېلني ولې؟

**توراج** بې بدو بدنام شو نېک نام نهٔ شو
جفاکار ئې شول ياران اوسني ولې؟

## غزل

تېره مې ځواني شوله زوال ته رسېدلے يم
حال چې د چا بد وي هغه حال ته رسېدلے يم

ټيک ده چې لا علمه يم د ښار نه لرې اوسمه
زۀ پۀ لاعلمئ کښې خپل کمال ته رسېدلے يم

پروت يمه تنها لکه ماشوم هلال رانيسمه
ګورمه سما و ته هلال ته رسېدلے يم

دلته پۀ قيام بره د عرش پۀ فرشتو نظر
نۀ راځي چې خيال ته هغې خيال ته رسېدلے يم

يا به ديدن اوکړم يا به مړ شم پته نۀ لګي
اوس د لېونئ د کور دېوال ته رسېدلے يم

مينه مې **توراجه** پۀ نادان زړګي غالبه شوه
ځکه د ثواب پۀ ځائے وبال ته رسېدلے يم

# غزل

د ایمان او د اسلام پۀ برکت
معطر شوم د خالق پۀ معرفت

نصیحت د معلم ته محتاج نۀ یم
چې نظر کړمه پۀ ګور د ماهیت

دا د بل پۀ جنازه پسې چې درومم
ما دپاره بس دے دغه نصیحت

زۀ چې خپلو اندامونو ته نظر کړم
دا به واړه پۀ ما کاندي شهادت

چې سبا له د ثواب پۀ ځائے وبال شي
څوک به څۀ کړي د ریا پۀ عبادت

سرې سکروټې شي د اور یا جام د زهرو
بد عمل اخر سبب شي د ذلت

زۀ **توراج خاکسار** کۀ هر څومره پرهېز کړم
کړي ګفتار پۀ لاعلمۍ مې دلالت

# غزل

هغه ګودر هغه چینه هغه چینار نۀ دے
چې د وطن د جینکو ورته قطار نۀ دے

کله د ګلو کر کوُم کله ازغي شیندمه
یار پۀ صفت او غیبت دواړو ګنهګار نۀ دے

سره شوې اوسپنه پۀ شونډو عالم نۀ ښکلوي
تهمت پۀ ښکلو د اشرافو خلقو کار نۀ دے

څۀ خو به وي چې پۀ ازغنو لارو تګ کوُمه
هسې څوک نۀ ووځي د ښاره هر ځائے ښار نۀ دے

دلته بدرنګ د جهان ګرځي ملغلرې اخلي
بې ماله ښکلے د **خپل** سیورې خریدار نۀ دے

دغه دستور دے راروان د ابتداء نۀ داسې
عاجز سړے پۀ اولسي خبرات کښې شمار نۀ دے

کۀ د مالدار د خلې غزل وۀ د ستائېنې وړ وۀ
چې د **توراج** د خلې غزل دے مزېدار نۀ دے

## غزل

ډېر خلق عمل ته گوري مال او رنگ ته نۀ گوري
درومي ليوني د چا ريښمين پالنگ ته نۀ گوري

هغه ضميرونه هغه خلې به انصاف څۀ اوکړي
ستائي بلبلان پۀ شمع وريت پتنگ ته نۀ گوري

پېغلې د سرو زرو د کالو حسن مغروره کړې
وخت خوشحالوي د مئېنانو ننگ ته نۀ گوري

ښځگه به سارۀ راوړي د وخت لمبه لمبه فضا
صلحه کړي د تُورو د نيتونو جنگ ته نۀ گوري

داسې طبيبانو لره زېرے کۀ رتِنه ده
هائے افسوس پۀ دې دے چې د زړونو زنگ ته نۀ گوري

ستا **توراج** به ښځگه ستا پۀ کلي کښې خوشحاله شي
ستا د کلي ښکلي ئې کلام گلرنگ ته نۀ گوري

## غزل

پۀ سپین مېدان د تور اوربل د ټاله پرېوتمه
د یار د حسن وۀ کشش بدحاله پرېوتمه

کارغۀ د زرکې تلل کول خپل ترې نه څکه هېر شو
زما څواني لاړه د خپله چاله پرېوتمه

د کال کچه انګور د ونې بره سر ته رسي
پۀ ما پیري راله د لنډ دېواله پرېوتمه

پۀ نېک نامۍ مې سېن[§] کراماً کاتبینو اوکړو
غربت دې ورک شي د هر چا د خیاله پرېوتمه

مرګیه مۀ راځه مخلوق ته لا محتاج نۀ یمه
هله راځه کۀ د خالق د سواله پرېوتمه

پۀ اشاره به کلمه د شهادت وایمه
وائي **توراج** کۀ نور د قیل وقاله پرېوتمه

[§] - اصل لفظ سائن دے انګلش کښې دستخط ته وائي اولسي لهجه کښې سېن وئېلے شوے۔

## غزل

تا چې د جفا پۀ لاسو څو وارې شلؤلے دے
ما درته هغه ګرېوان پۀ اوښکو لوند نیولے دے

ظلم پۀ مظلوم کؤل او مال پۀ چالاکۍ وهل
نن پۀ معاشره کښې هم هغه سړے ښاغلے دے

څۀ به وېمه مور ته چې اوس کور ته داسې لاړه شم
خال د اننګې مې لیونې اشنا خوړلے دے

لاس د امیرانو بادشاهانو ورته نۀ رسي
جنګ د لونګین مې پۀ سینه د یار لیدلے دے

شور دے د نخترو د بادرو هوا پرې ځي راځي
هلته زما زړۀ پاتې دے هاغه د یار کلے دے

تلل د فاسقانو فاجرانو به پرې اونۀ شي
ځکه چې صراط پۀ سرو اورونو غوړېدلے دے

څوک چې ځان ته بر وائي **توراجه** بره تلے نۀ شي
بر زما دلبر دے چې د عرش نه بره تلے دے

# غزل

د مينې نوم پهٔ خلهٔ اسان ښکاري
ماته خو پت د مينې ګران ښکاري

هغه صحرا ته هېڅوک سېل له نهٔ ځي
چې پکښې ګل نهٔ وي زوزان ښکاري

هر څهٔ ته ګوري هر خوا مخ اړوي
عاشق ته هر څهٔ کښې جانان ښکاري

مرور يار راغے زمونږ کلي ته
د ژمي نمر دے قدردان ښکاري

متکبره رقيب غلے تېر شهٔ
پهٔ خوار سلام ورته تاوان ښکاري

چې پکښې رنګ د تربګنۍ ځليږي
هاغه دے هاغه محفل وران ښکاري

**توراج** پهٔ خپله ځان ته حشر جوړ کړو
هره لمحه ئې امتحان ښکاري

# غزل

پۀ ښاريو کښې پۀ بنګلو کښې د ګملو ګلونه
ښکلي ترې ښکاري د صحرا د کاربزو ګلونه

د خوشبويۍ پکښې اثر نشته دے سترے به شې
کۀ بويوې تمامه ورځ د پربرو ګلونه

تورو لوګو د ښاريو لمنې اونيولې
د غرو لمنو نه چاپېره د پلو ګلونه

د ښاريو پېغلې پۀ زلفو خوشبويۍ لګوي
د کلي پېغلې پکښې ږدي د کشمالو ګلونه

زمونږ د خړو کوڅو خړ ماشومان مينه مينه
کيږي پرې سود لکه چې وي د پسرلو ګلونه

پۀ تهمت رنګه ياره راشه تماشې له سبا
د پشکال ورخاړو اوکړل پۀ بلو ګلونه

**توراجه** رب به پسرلے پۀ وطن راولي بيا
يار له به ور کړمه کۀ خبر وي پۀ قودو ګلونه

# غزل

بیمار چې هر طبیب له ځي خبره ئې پال ته رسي
څوک چې د وخت سپېړې اوخوري نو کمال ته رسي

پۀ لوړو غرونو محلونو ګړنګونو تېر شي
چړچه د نمر هم تر ماښامه وي زوال ته رسي

د چا خبره "چې پردي راوړي نۀ خپلیږي"
مینه پرې زیان شي چې پرې ناز اوکړي جنجال ته رسي

غوړې شکرې خوري پۀ ملک کښې د خانانو لوڼه
بدقسمتي ده چې مچان د کونډې خال ته رسي

ګلِ صدبر هم اوچتیږي خو تر خپله حده
انګور خو نۀ دے چې به لس فُټه دېوال ته رسي

**توراجه** ستا غزل شبنم شو پۀ ګلونو باندې
اسم اعظم دې شي چې زړونه پرې هلال ته رسي

# غزل

ګوري اول مخ ته بیا طبیب کوي پۀ زړۀ نظر
نۀ پرېوځي یو ځائے پۀ کعبه او مېکده نظر

ټول عمر پۀ ښکلو لکه تور چې لګېدلے دے
صبر به شي څنګه پۀ یوه توبه هغه نظر

ټال چې څومره مخکښې منډه وئ دومره پۀ وروستو ځي
پاتې د پهچانه شو د یار نشه نشه نظر

نۀ درنه څۀ غواړم نۀ حاجت پوره کؤلے شې
هسې راته ګوره کله کله لږ پۀ ښۀ نظر

ستا د بُت پرست نظر سجدې لات او منات ته دي
نۀ ګوري کعبې ته نۀ ئې سود شي پۀ کعبه نظر

والوتو شبنم د سرو ګلونو د سرونو نه
اور دے پۀ فضا کښې کنه ستا لمبه لمبه نظر

مړو ته **توراجه** سپېلني لوګے کوې ولې
بولي دې ساده خلق همېش له پۀ ساده نظر

## غزل

د شمله دار پټکي د ول خبرې هېرې شولې
د سور پېزوان او د چارګل خبرې هېرې شولې

د اخترونو ښکلاګانې حسرتونو یوړې
هر څوک پردي پالي د خپل خبرې هېرې شولې

لاړو غربت راغے دولت مینه ئې اوخوړله
د کور ګاونډ او د بدل خبرې هېرې شولې

د تنهایۍ چغې خورې شوې پهٔ تمامه دنیا
اوس د اشر او د غوبل خبرې هېرې شولې

ګودرې شاړې شوې منګي مات شو موده اوشوله
پکښې د پېغلو د محفل خبرې هېرې شولې

هغه د ګټو ختو غټې حجرې خړې کوڅې
پکښې د غم ښادۍ د ټل خبرې هېرې شولې

غټې خلقې جګې شملې د پښتنو ورکې شوې
د پښتو نورې داسې سل خبرې هېرې شولې

سترګې پۀ کوم طرف کړې کړم چاته اوګورمه
مشران مړۀ شول د متل خبرې هېرې شولې

**توراجه** هېر شو داسې ډېر چې د هېرولو نۀ وو
خبر دے کۀ تانه د غزل خبرې هېرې شولې

## غزل

پېغله پښتنه ده چې د چا پۀ نام ولاړه ده
کبر له زوال دے پۀ اړولي جام ولاړه ده

سحر کۀ جادو دے مينه دومره تاثير نۀ لري
بيا پۀ انتظار کښې پۀ سکښې ماښام ولاړه ده

ورور به ئې **قاتل** شي پښتانۀ رسوائي نۀ قبلئ
دا شوه د **اجل** مرغۍ پۀ سر د دام ولاړه ده

نۀ مني سوالونه خودداري پکښې راغلې ده
ګوته د ملا شوه پۀ الف او لام ولاړه ده

څنګه به ترې مخ واړوې څنګه به انکار اوکړې
مينه د **توراج** لکه سپوږمۍ پۀ بام ولاړه ده

# غزل

بدحاله ناست ووم مازيګر وۀ چې غزل مې ليکۀ
د ژمي ورځ وه لوئې اختر وۀ چې غزل مې ليکۀ

د ژمي ورځ وه او يخ باد وۀ او باران وريدو
زما يو زوړ ښادر پۀ سر وۀ چې غزل مې ليکۀ

د قربانۍ ورځ وه زمونږه کره غوښه نۀ وه
د اوښکو ډک زما نظر وۀ چې غزل مې ليکۀ

نۀ مې پېسې پۀ جېب کښې وې نۀ مې جامې ښکلې وې
د ليوني مې حال بتر وۀ چې غزل مې ليکۀ

ما چې ماښام روټۍ خوړه نيا مې لاونه پوخ کړے
زړۀ نه مې يو الله خبر وۀ چې غزل مې ليکۀ

پلار مې پۀ جېل کښې ترۀ پۀ جېل کښې د غربت دور وۀ
ماما زما د ژوند رهبر وۀ چې غزل مې ليکۀ

د هر څهٔ قات وهٔ خو ځواني راسره ښهٔ نعمت وهٔ
نهٔ مې وطن نهٔ مې ټبر وهٔ چې غزل مې ليکهٔ

**توراج خاکسار** پهٔ جار د سترګې ژوند قيصه وکړله
پهٔ ډوبېدو د ژمي نمر وهٔ چې غزل مې ليکهٔ

# غزل

ستا خالونه ښکلاګانې ستا د ژوند دي
خو کتل دې د قانون ځنې پابند دي

شنۀ طوطيان پۀ شاهانه محل کښې ګرځي
ښاپيرک جمله شجر سره زوړند دي

د منګي خوله پۀ برغولي باندې پټه
ماشومان اودۀ پۀ غېږ يا پۀ مړوند دي

د حباب پۀ سر ګلان کرلے نۀ شي
مالياران کۀ ئې هر څومره عقل مند دي

پرې ګواه ده د عالم او قلم ژبه
"دوه رخساره دې دوه سېب د ثمرقند دي"**

داسې قد و قامت اوس نيشته **توراجه**
چې تر **سدرُالمنتهیٰ** پورې بلند دي

** - دا طرحي کلام د رحمان بابا پۀ مصرعه ليکلے شوے دے.

# سندره

چې لوپټه دې بدلوې رنګونه
زهٔ دې پهٔ ژبه اعتبار څنګه اوکړم
زما د عمر کاروان نهٔ اودرېږي
ستا د وعدې انتظار څنګه اوکړم

ماته یوه کړې بل ته بله جانانه دا سې کوې څله
سبا به خاندي را سره وختونه
پهٔ صداقت دې اقرار څنګه اوکړم

عاشقي بې نشې نشه ده مینه د اوره کمه نهٔ ده
چاپېره تاؤ شو رانه سرهٔ اورونه
پهٔ سرو لمبو کښېږ قرار څنګه اوکړم

پهٔ تهمت رنګه یاره راشه زما د زړهٔ پهٔ حال اګاه شه
ورخاړو اوکړل پهٔ بلو ګلونه
بربد پهٔ سپرلي او بهار څنګه اوکړم

وطن کعبه ده مخ ترې ناوړي        څوک به خبر د جانان راوړي
د کاڼو سخت دي د خوبانو زړونه
زهٔ پرې زوربړم ازار څنګه اوکړم

پښتو مې ژبه پښتو وايم        زهٔ د پښتو محفلې ستايم
خوارهٔ خوارهٔ دي د **توراج** شعرونه
د حقيقت نه انکار څنګه اوکړم

# سندره

لګي خواږهٔ بادونه ، ښائسته بهار دے
شکر دے بيا دے سپرلے ، وطن ګلزار دے

ځي پهٔ خندا خندا ، جونه د کوره
تازه ګلونه شوکئ ، رېباره ګوره
جوړ د حسينو پېغلو ، اوږد قطار دے

د هرې پېغلې پهٔ سر ، د ګلو شکور وينمه
د خوشحالئ ورځې دي ، دور ئې نور وينمه
د رنګا رنګ ګلونو ، موسم تيار دے

پېغلې جوړه جوړه ځي ، پهٔ لار ملګرې
پهٔ سُرکو شونډو وائي ، د خوند سندرې
پهٔ بيابان جوړ شوے ، مينا بازار دے

رب دي آباد لري ، چرې دې وران نهٔ شي
داخل دې هيڅ کله پرې ، سپېرهٔ خزان نهٔ شي
خړ ګنډېرے **توراج** ته پېښور ښار دے

# سندره

څوک ئې پهٔ څښلو نهٔ مړېږي
زمونږ د کلي اوبهٔ پهٔ نورو کلو تقسيمېږي

زمونږ د کلي پهٔ شان کلي پهٔ پښتونخواه کښې نشته
لارې کوڅې اوبهٔ ئې ښکلې ګردې فضا کښې نشته
خوا کښې ئې غټ جيندے بهېږي
زمونږ د کلي اوبهٔ پهٔ نورو کلو تقسيمېږي

زمونږ پهٔ کلي کښې نيستي وه خو څوک پرې نهٔ وو خفه
څهٔ عجيبه عزيز والي وه بل ئې نيتونه صفا
تاريخ ئې نمر غوندې ځلېږي
زمونږ د کلي اوبهٔ پهٔ نورو کلو تقسيمېږي

زمونږ د کلي توتان د شاتوتانو نه اوږدهٔ دي
تور کړکړې اينځران د سرو املوکو نه خوږهٔ دي
پرې نعمتونه راورېږي
زمونږ د کلي اوبهٔ پهٔ نورو کلو تقسيمېږي

زمونږ د کلي دېوالونه دي پهٔ ورخاړو ښائسته
هم د ګنو غټ غټ ټلونه بوټي د جاړو ښائسته
توري مچې پکښې بڼېږي
زمونږ د کلي اوبهٔ پهٔ نورو کلو تقسيمېږي

پهٔ مانسهره به ئې ورنهٔ کړم ډېر مې د کلي خوند د ے
مالم جبه کالام به څهٔ کړم ښهٔ ترې زمونږه ژوند د ے
خوشحاله ژوند پکښې تېرېږي
زمونږ د کلي اوبهٔ پهٔ نورو کلو تقسيمېږي

زمونږ ددې جيندي مهيان کړل طبيبانو جارو
ورله راځي غټ غټ خانان د مرضونو دارو
کبل کښې ئې غوا مېښې څرېږي
زمونږ د کلي اوبهٔ پهٔ نورو کلو تقسيمېږي

علي خان دلته زېږېدلے زمونږ نېکونو به وې
دې قبرستان کښې شته د ے ښلےکوي پرې خلق دعوې
پهٔ ګوته نمر کله پټېږي
زمونږ د کلي اوبهٔ پهٔ نورو کلو تقسيمېږي

د هشتنغر بره حصه ده د ګنډېري اړخونه
هم ئې تاريخ هره کوځه ده تېر پرې بلها مخونه
قومونه ډېر پکښې اوسېږي
زمونږ د کلي اوبۀ پۀ نورو کلو تقسيمېږي

زمونږ د کلي اخترونه د محبت نه ډک دي
دا د **توراج خاکسار** شعرونه د حقيقت نه ډک دي
ځکه د سرو پۀ نرخ بدلېږي
زمونږ د کلي اوبۀ پۀ نورو کلو تقسيمېږي

# چاربيته

ته به وفا ګورې پۀ يار کښې
هغه به ستا د سر قصاب جوړ شي
دهوکه به اوکړي پۀ اعتبار کښې
خپله نېکي به دې عذاب جوړ شي

ته به وے دا زما د مينې يار دے
هغه به بل طرف ته ګام اېښے وي
د بې وفاؤ اکثر دغه کار دے
درته به ئې پټ د تګی دام اېښے وي
پۀ اوسنو يارانو څۀ اعتبار دے
کۀ درته لاس ئې پۀ کلام اېښے وي
دهوکه ئې خېژي پۀ روزګار کښې
اصلي دلال ترې د پنجاب جوړ شي

اصلي اشنا پۀ اصلي غرونو کښې وي
پۀ ښاريو کښې څوک وفا نۀ کوي
محبت بعضې بعضې زړونو کښې وي
د محبت پۀ ځائے جفا نۀ کوي

د چا نظر پردي مالونو کښې وي
نظر په لوري د عقبیٰ نۀ کوي
د سود پرستو په بازار کښې
د زيان به کله انقلاب جوړ شي

د زيان عادت نۀ وۀ قارون حبيث وۀ
چې دشمني ئې د موسیٰ شوله
راج په عالم کښې د ښائسته بلقيس وۀ
په يو کاغذ باندې رضا شوله
هغه د مصر د بادشاه قميص وۀ
چې د ړندو سترګو دعا شوله
چاته سکون اوشي په نار کښې
د چا د سر قاتل درياب جوړشي

د چا ارمان په دې جهان پوره شي
شونډې ئې بوسه خوري د اوګيو په مينځ کښې
ډېوټي په موت د سلېمان پوره شي
همسا ئې ژوند کړي د وېنو په مينځ کښې

شداد وې نن به مې ارمان پوره شي
جنت ته ځم د دروازو پهٔ مينځ کښې
روح ترې نه لاړ پهٔ لويه لار کښې
مکان به ښنګه پهٔ حباب جوړ شي

مکان به پاتې شي عقبیٰ له به ځې
مغروره نهٔ شې پهٔ دولت باندې
ورځ د جزا او د سزا له به ځې
يقين دې خاص کړه پهٔ قيامت باندې
حساب کتاب له پاک اللّٰه له به ځې
**توراجه** پوئې شه حقيقت باندې
پهٔ خيال قدم ابږده بازار کښې
خيال به دې هله انتخاب جوړ شي

# چاربیته

بې ننګه بې وفادلبره دا مې درته سوال دے
زما نه مۀ کړه ځنګ
پۀ باب د عاشقۍ کښې تهمتي شوم بد مې حال دے
یم تاپسې ملنګ

پۀ باب د عاشقۍ کښې مشهور شوم لکه قېس
پرې ښۀ اوکړه باور
ستا مینه ماه جبینې شوه زما دپاره ډېس
ببېلم پرې مال او سر
اوربل دې الُول تېک پرې رڼا کړي لکه ګېس
سرې شونډې دې صدبر
مزل دې د چار سالې پۀ سر کړے دې سور شال دے
نن ستا د ځوانۍ منګ

مزل مې د چار سالې راته مۀ ګوره هلکه
پۀ زړۀ به شي رنځور
زۀ یمه د محلت خپلو همزولو کښې ملکه

د څنګ نه مې شه دور
ته ئې چرته فقیر ځان له یاري اوګوره سپکه
اوس پوئې به شې ضرور
ځواني زما خاني ده نن مې دور د جمال دے
پۀ غاړه مې لونګ

ځواني به دې تالا شي بیا به ډېر اوکړې ارمان
زما پۀ شان به ژاړې
دستور دے د دنیا راځي بهار پسې خزان
پۀ سوال به هر څۀ غواړې
ګړی د ژوندانۀ تیاروي درله چالان
یو ځل به کړه انغاړې
د کبر نه توبه کړه اخر کبر له زوال دے
پۀ خوارو کوه ننګ

د کبر پۀ محفل کښې نۀ کښېنم نۀ کبر ژنه یم
یرېږم د الله نه
نه زۀ د بعضې خلقو پۀ شان یاره دروغژنه یم
ریښتینې یم پخوا نه
دا ستا پۀ جدایۍ باندې اشنا ډېره غمجنه یم

جدا ګرځې زما نه
يو ځي او بل راځي ددې دنيا د سرائے مثال دے
معافي غوارم د جنګ

يو ځي او بل راځي چې کله ده دنيا اباده
چليږي دا روزګار
خبر دے پاک الله د پټو زړونو د مراده
څوک نهٔ دي خبردار
پرته راته اوږده لاره پهٔ مخکښې د عقبا ده
کوم به پرې رفتار
ددې نه کهٔ مخ اړوم **توراج** وائي وبال دے
غورځېږم د ګړنګ

# چاربېته

دا روغ صحت د مرګ نه مخکښې غنیمت اوګڼه
دغه ژوندون پهٔ دې دنیا د خدائے نعمت اوګڼه

دغه ژوندون دے دې ژوندون کښې بد عادت مهٔ کوه
د بدو خلقو بدکارانو حمایت مهٔ کوه
سپینه جامه کښې د قرآن مخالفت مهٔ کوه
توبه تائب شه خپل غلط کار دې غلط اوګڼه

توبه تائب شه د ګناه پېټې پهٔ سر مهٔ اوړه
د تنهایۍ کور له عمل دې د خطر مهٔ اوړه
ورځ د محشر له پردے حق پهٔ هیڅ هنر مهٔ اوړه
بیا به خفه ئې دا کلام مې نصیحت اوګڼه

بیا به خفه ئې د خفګانه څهٔ جوړېږي به نه
سوال به کوې خو د الله در کښې قبلېږي به نه
د جهنم ملَک پهٔ تا باندې ترسېږي به نه
د ځانه نهٔ وېم دا خبره حقیقت اوګڼه

د ځان نه نهٔ وېم د الله کلام ګواه دے پهٔ دې
کهٔ خېر او شر راځي بس وايه رب رضا دے پهٔ دې
ورځ د محشر حقه ده جخت يقين زما دے پهٔ دې
پهٔ ژوندانهٔ باندې ځان مړے د عبرت اوګڼه

پهٔ ژوندانهٔ الله رضا کړه د خپل ځانه وروره
رابطه کټ که مکمله د شېطانه وروره
د سفر لاره به دې مخکښې شي اسانه وروره
قرآن د خېر کتاب دے دې کښې خپل عزت اوګڼه

قرآن راواخله چې خبر شې د حالاتو نه تهٔ
د زمانې د مخکښې وروستو واقعاتو نه تهٔ
وائي **توراج** اوساته ځان د شرکياتو نه تهٔ
مرګ ته نزدې شوې رانزدې ورځ د قيامت اوګڼه

# چاربیته

مخ کښې مې سرخي د جانان سپورو ستغو کمه کړه
اوګوره طبیبه چې د څۀ سره به ښۀ شمه

اوګوره طبیبه زما لاس چې پۀ ما څۀ اوشو
پروت یمه بې تابه تاب مې نشته دے کړېږمه
زۀ چې یار ته ژاړم راته اوخاندي چې ښۀ اوشو
پاڼه د لاله شوم پۀ نري شمال دوړېږمه
کوډې منترونه تعویذونه مې پۀ زړۀ اوشو
زۀ لکه بې موره ماشوم یار پسې ژړېږمه
ماته خپلې مینې د یار مینه محترمه کړه
مخ کښې مې سرخي د جانان سپورو ستغو کمه کړه

نشته دے ښنګل د اشنا څۀ باندې اودۀ شمه
اوګوره طبیبه چې د څۀ سره به ښۀ شمه

نشته دے ربېار چې مې د يار پۀ حال خبر کړي نن
تلے نۀ شم پۀ خپله بېلتانۀ بند کړې لارې دي
څوک به سوال جواب زما د خلې اشنا له ورکړي نن
خوب کښې مې ليدلي لېونۍ سترګې خمارې دي
اوښکې به مې اوچې څوک د مينې پۀ څادر کړي نن
سترګې ميرات مړې مې د زړۀ نه وفادارې دي
پټو مشورو مې د زړګي راوښه طمع کړه
مخ کښې مې سرخي د جانان سپورو ستغو کمه کړه

ژاړمه پۀ سترګو خو پۀ خوله وئېلے نۀ شمه
اوګوره طبيبه چې د څۀ سره به ښۀ شمه

ژاړمه مدام لکه غلام دغه مې حال دے
حال چې د چا بد وي آ به څۀ پۀ ژوند خوشحاله شي
زړۀ مې پۀ چاړۀ د بېلتانۀ پۀ لاس حلال دے
لعل جوهر دې ځار د يار د حسن د جماله شي
يو ساعت بغېر د ياره هر عاشق ته کال دے
کال څۀ وي عالمه چې پرې اوږد لا د کاله شي

يم پۀ انتظار کۀ چا هوښيار خبره سمه کړه
مخکښې مې سرخي د جانان سپورو ستغو کمه کړه

وينم چې رقيب لکه غريب خوله خوله شمه
اوګوره طبيبه چې د څۀ سره به ښۀ شمه

وينم چې غمونه د عقبٰی راته پۀ غاړه دي
ټول عمر مې تېر شو د دنيا پۀ اداګانو کښې
شپې د بېلتانۀ زما پۀ شاړه پۀ ويجاړه دي
چرته به څوک وي چې به مې ياد کړي دعاګانو کښې
حشر او صراط راته پراتۀ پۀ مخکښې دواړه دي
رب د کائنات مې دې حساب کړي عابدانو کښې
طمع مې توراج وائي چې قطع د عالمه کړه
مخ کښې مې سرخي د جانان سپورو ستغو کمه کړه

غم د اخرت ته د حسرت ګوته پۀ خلۀ شمه
اوګوره طبيبه چې د څۀ سره به ښۀ شمه

# چاربېته

کۀ دې پۀ توره شپه د سپينې خلې خبر راغے
زۀ به پۀ توره شپه نعرې کړم چې اختر راغے

زۀ به سر زېرے ورکؤم لحاظ منمه اشنا
دغه احسان به د رېبار پۀ ځان وړمه اشنا
پۀ انتظار دې د راتلو لارې څارمه اشنا
د محبت مې پۀ دماغو کښې اثر راغے

د محبت پۀ ملک کښې کېږي صفتونه زما
پۀ چغو سر دي د مئين زړۀ پرهرونه زما
د غم زده سترګو نه ځي اوښکې رودونه زما
د پت اواز د جام د حوض کوثر راغے

د پت اواز غماز د ناز پۀ ساز چېړلے نۀ دے
عاشق پۀ مينه چا د کلي نه شړلے نۀ دے
سائل د سپينې خلې پۀ سوال خوبان رټلے نۀ دے
د يار لمن باندې د ړوند اشنا نظر راغے

د یار بوسه ئې ښکلؤله جنتي شو خلقه
چې انتظار ئې د دیدار کړو قیمتي شو خلقه
د شاه غلام د شاه پهٔ کور کښې تهمتي شو خلقه
پهٔ ښار د مصر سلطنت د پېغمبر راغے

پهٔ ښار غوغا شوه چې پهٔ اور کښې به سبا سوزي
خلیل د رب به پهٔ لمبو کښې یک تنها سوزي
نمرود وئېل چې به ئې هډونه خامخا سوزي
براه راست اور له خبر د رب اکبر راغے

اور شو ګلزار لکه فردوس کښې چې خلیل پروت وي
پهٔ هر یو کار کښې ناز او راز د رب جلیل پروت وي
**توراجه** څوک چې پهٔ اسره کښې د وکیل پروت وي
امداد ئې کېږي خامخا دا مې باور راغے

# چاربیته

لېونۍ د ډېره خیاله پۀ مخ خال ږدي
ژوند خراب به کړي د ښکلو عاشقانو
د رنځور پۀ شانې هر قدم پۀ فال ږدي
فال به مات کړي چې شي مشره د خوبانو

لېونۍ چې شي روانه زړۀ مې رپي
لکه رپي چې ماڼۍ پۀ زلزله کښې
څنګه مخکښې چې امام وي وروستو صف ئي
داسې صف د سوبلو ئې پۀ بنګله کښې
اور چې بل شي معمولي مثال ئې تپ ئي
تپ د هجر مې عنوان شو پۀ ډوله کښې
سرې منګولې شاه دپاسه پۀ دېوال ږدي
پۀ دېوال ئې رڼائي د سرو لبانو

سرې منګلې د بلبلې پۀ اترنګو
پۀ اترنګو باندې سود کوي د شاتو
سپینه غاړه ئې کړه ډکه د لونګو
د لونګو سره مینه د بناتو
پۀ محفل کښې مسته ناسته د ګړنګو

د ګړنګو حوا له تلل پۀ ننواتو
عاشقان ورته ډالۍ د سر او مال ږدي
مال پۀ لتو وهي لوښه د شاهانو

عاشقان پۀ یار د سر او ماله تېر وي
نۀ تېرېږي ئې طعام بغېر د یاره
عاشق هغه وي چې سود او زیان ئې هېر وي
هېر هغه شي چې شي پاتې د روزګاره
محبت چې ئې د زړۀ ځني چاپېر وي
چاپېر نۀ ګوري چې څۀ دي ما دپاره
پۀ پولو بربنډې پښې لکه د ډال ږدي
ډال پۀ لاس کښې وي اکثر د بهادرانو

پۀ پولو[††] چې څوک ورخېژي زړۀ ئې سوي
سوي زړۀ لره پکار نعم البدل وي
د طبیب سره علاج د بعض نۀ وي
نۀ وي ځکه چې دا وجه د عمل وي

[††]- دغنو شپول

لکه نډه[‡‡] چې سینه د امي روي
داسې روي خون د زړۀ چې یار ترې بېل وي
ماشومان د ناز لاسونه پۀ هلال ږدي
هلال نۀ راځي پۀ لاس د ماشومانو

ماشومان پۀ لاسو نمر سپوږمۍ رانیسي
هم رانیسي سرې سکروټکې د سور اور
کۀ فوجونه د دارا او د بلقیس ئي
د بلقیس نه هم شو پاتې کلے کور
کوچ به اوکړي کۀ د ټول جهان رئیس ئي
هم رئیس به شي **توراجه** خاک د ګور
شاعران د ژوند پۀ هر اړخ مثال ږدي
د مثال ډکه وېنا د شاعرانو

‡‡- ماشوم ته وائي احمد دین طالب هم خپلو چاربېتو کښې دا لفظ ډېر استعمال کړے دے .

# چاربیته

تا راته کتلي ځکه ما درته کتلي دي
تا اول خندلي روستو ما درته خندلي دي
تا پۀ دغه سپینه خلۀ اقرار د محبت اوکړو
ما درته اقرار د خپل زړګي د صداقت اوکړو
پت به درسره پالم کۀ تا راسره پت اوکړو
ولې دې لیلیٰ پۀ خمارو سترګو ژړلي دي

ولې ځې پۀ څنګ ، نۀ کوې ننګ پۀ ما بیمار کنه
مینې دې ستي کړمه پتنګ پۀ سور انګار کنه
ناست ئې پۀ پالنګ لکه د ناوې پۀ مقدار کنه
زلفې دې زېلۍ پۀ مخ د کورو غوړېدلي دي

زلفې دې اوږدې لکه قودې چې د لونګو وي
کوکې دې سرخي که لکه سرې چې پۀ اترنګو وي
پربوځي د ګړنګه څوک مئبن چې پۀ ګړنګو وي
سیال ښائي د سیاله سره دا مې اورېدلي دي

سیال چې شي د سیاله سره سره غنچه د ګلو شي
سترګې هله ښکلې شي چې سترې پۀ ژړلو شي
کمه به لا څنګه ګلدسته پۀ بویۀلو شي
پټې چا غونچې د بوراګانو نه ساتلي دي

پټې سترګې ګرځم د ګونګې پۀ شان عالمه زۀ
کم پۀ عشق کښې نۀ یم د درخو او د ادمه زۀ
نوم زما **توراج** دے د اشنا د غمه مرمه زۀ
ځکه مې مصرعې د عاشقۍ پۀ باب لیکلي دي

**د کتاب ټول حقونه د مصنف پۀ حق کښې خوندي دي**

| | | |
|---|---|---|
| د کتاب نوم | : | پۀ سرو لمبو کښې قرار څنګه اوکړم |
| ليکوالان | : | عبدالجبار سهل |
| کمپوزر | : | قاسم ساګر |
| کره کتنه | : | تصور مانړوال |
| شمېره | : | 200 |
| بيعه | : | 300روپې |
| چاپ کال | : | 2023 ء |
| چاپ ځاے | : | سیّد کمپوزنګ سنټر ټوپئ ( 0315-9887887 ) |

# سپېځلے او ښاغلے سړے

څۀ ورځې مخکښې راله ډېر ګران او خوږ مشر عبدالجبار سهل صېب خپله ناچاپه شاعري چې کمپوز شوې وه چې د قام قلم دفتر کښې راکړه وئېل ئې چې دې کښې اصلاح وکړه او خپل ليک پرې وکړه ـ شاعري مې ترې واخستله څۀ ورځې مې واغستلې خو ټوله شاعري مې وکتله څۀ بعضې د وزن ، بحر کمے بېشے پکښې وۀ خو نوره پۀ مجموعي توګه ډېره ښۀ وه د خپلو احساساتو بې ساخته ترجماني وه ـ عبدالجبار سهل صېب ډېر سپېځلے ؛ ډېر مخلص او زړۀ سواندے انسان دے ؛ يو مخيز دے ـ پۀ ډېرو نۀ پوهيږي خو صرف پۀ دې پوهېږي چې زما دې ملګري خوشحاله وي ـ د کتاب د چاپ اراده ئې کړې ده او دا پۀ حقيقت کښې د خوشحالۍ خبره وي چې د شاعر شاعري د هغۀ پۀ ژوندوني چاپ شي ـ عبدالجبار سهل هم دا خواهش ظاهر کړے دے ـ او الله دې وکړي چې دا خواهش ئې تکميل ته اورسي ـ د قام قلم پۀ ملګرو ډېر د زړۀ نه مئېن دے ـ ماته ئې وئېل چې دا خواهش مې دے

چې د کتاب مخکتنه د قام قلم د سیورې لاندې اوشي ـ د قام قلم اجلاس له پۀ کمزورې وجود راځي خو دا ئې د مينې انتها ده ـ زړۀ ئې ځوان دے د سرې پرې کله کله د پروفېسر انور علي جان صېب مینه ماته شي ـ هغۀ پۀ غوربونو لږ کمزورے دے مشین ئې پۀ جېب کښې وي او سهل صېب هم د مشین نه بغېر نیمګړے وي ـ دواړه ډېر خوارۀ مشران دي ـ ما د سهل صېب شاعري ټکي پۀ ټکي اوکتله بعضې شعرونو کښې ئې ګرانې قافيې هم راوړې دي ـ چې پوهېدل پرې علم غواړي او بعضې شعرونه ئې د سهل ممتنع غوره نمونې دي ـ پۀ ساده او اسانو ټکو کښې ئې ډېرې د کار خبرې کړې دي ـ شاعرۍ کښې ئې مختلف صنفونه راوړې دي ـ چې پۀ هغې کښې غزل نظمونه او چاربېتې دي ـ شاعري ئې د عصري حالاتو ترجماني کوي ـ چې حالات ځنګه وي نو شاعر هم هغه شان شاعري اولس له ورکوي ـ کۀ یو خوا پرې د معاشرې د اولسونو اصلاح کېږي نو بل خوا پرې د شاعر کهیتارسس هم اوشي ـ عبدالجبار سهل صېب د حالاتو ترجمانه شاعري کړې ده شاعرۍ کښې ئې کۀ یو خوا

وعظ او نصیحت شوے دے ـ نو بل خوا ئې پکښې رومانیت هم ځائے پۀ ځائے ښکاره کړے دے ـ د اکثرو پوهانو دا خیال هم دے چې د شاعرۍ انعکاس هم د رومانیت نه کیږي ـ او پۀ شاعرۍ کښې چې رومانیت نۀ وي ـ نو لکه بې مالګې طعام ـ ځکه خو مې بې ساخته دا شعر خولې له راغلو :

خدایه د مینې کور اباد مې لرې
بس دے د جنګ خبرې ډېرې اوشوې

عبدالجبار سهل هم خپل رالېږدلي احساسات سندرې کړې دي ـ او پۀ اولس ئې وېشلې دي الله دې وکړي چې د عبدالجبار سهل دا شاعري د اولسونو پۀ زړونو باندې د پهې کار اوکړي ـ پۀ اخېره کښې به دا دعا وکړم ـ چې الله دې ددوي مشرانو سیورے زمونږ پۀ سرونو لري ـ آمین

پۀ ډېره مینه
تصور مانېروال
لېکچرار پښتو څانګه
ګورنمنټ پوسټ ګرېجوېټ کالج صوابۍ

## د سهل شاعرۍ ته یوه کتنه

عبدالجبار سهل چې دا وخت د شپږو اویاؤ کلونو عمر ته رسېدلے دے ۔ ۱۹۴۲ ء د خپل زېږون نېټه یادوي ۔ لاهور کښې ئې لسم جماعت پاس کړے دے ۔ د فوځ د نوکرۍ نه د پنشني کېدو نه وروستو ئې د عمر زیاته برخه دوبۍ اماراتو کښې تېره کړې ده ۔ د هلکوالۍ نه شعر و ادب سره اړیکې لري ۔ ښکلې ښکلې رباعیانې لیکي ۔ ډېرې چاربېتې ورسره خوندي پرتې دي ۔ اوس ئې اراده کړې ده چې توراج خاکسار سره یو ځائے پۀ شریکه د شاعرۍ کتاب چاپ کړي ۔ عمر چې څومره زیاتېږي نو تجربه او مشاهده نوره نوره زیاتېږي ۔ اولسي شاعري د عوامو د مزاج مطابق وي ۔ هیڅ قسمه څۀ ګنجلکې فلسفې پکښې نۀ بیانېږي ۔ د اولس زړونو ته براه راست اپیل کوي دغه شاعري عوام ډېره خوښوي ۔ بلکې د اولس پۀ زړۀ پورې شاعري ورته وئېلے شي ۔ سهل بابا د قام قلم صوابۍ یو تکړه او فعال ممبر دے ۔ د ټولنې هر اجلاس دپاره حاضر وي ۔ ددوي اولسي شاعري او ددوي ساده مزاج ددې خبرې غمازي کوي چې ددوي شاعرۍ کښې د موصوف سپېځلے شخصیت څرګند برېښي ۔ اللّٰه تعالیٰ دې وکړي چې د بابا شاعري د لوستونکیو د مزاج

مطابق وي او لوستونکي سهل بابا پۀ داد او تحسين ونمانځي.

ډاکټر اطهر شاه ټکور
ګورنمنټ ډګري کالج طوطالۍ بونېر
دسمبر ۲۰۲۳ء

## قطعه

نۀ لېونے يم نۀ مې بنګ څښلي چې نۀ پوهېږم
د سرو لمبو د غرغرو مخې له څۀ له ورشم

زما ياران پۀ دې ګواه شو چې بوډا شو **سهل**
نور د دنيا د ننداړو مخې له څۀ له ورشم

## "د عبدالجبار سهل صیب فن او شخصیت"

اجتماعي شعور همېشه پۀ لاشعوري طور د ادب نه متاثره کیږي ځکه خو د یو قام قامي وحدت د ادب نه بغېر نیمګړے نیمه خوا وي۔ تر کومې چې د یو قام ادب پرمختنګ نۀ وي کړے تر هغې قام هم یو قدم مخکښې نۀ شي تلے۔ ځکه چې قام پۀ ژبه قام وي او د ژبې نه بغېر یو قام او د قام ادب ژوندے نۀ شي پاتې کېدے۔ پۀ شلمه پېړۍ کښې پښتو ادب هم پوره وده کړې ده خو پښتو له چې کوم مقام پکار وۀ تر هغې ډېره وروستو پاتې ده۔ وجه ئې پښتو ژبې سره د سرکار د مېرې مور سلوک او د پښتون قام د خپلې ژبې نه بې غوري ده۔ صرف پښتانۀ شاعران لیکوالان دي چې پۀ خپل مخ سر د خپلې مورنۍ ژبې پښتو پالنه او سر څنه کوي۔

پښتانۀ لیکوالان شاعران د خپلو ماشومانو د خلې نه نوړۍ شوکوي او د خپلې مزدورۍ پۀ پېسو د پښتو کتابونه چاپ کوي پروګرامونه مشاعرې کوي۔

داسې ننګیالو لیکوالو ملګرو کښې عبدالجبار سهل صیب هم دے۔ چې پۀ تېر عمر او ناجوړه وجود د پښتو هر پروګرام ته ځان رسوي ؛ شاعري کوي ؛ د خپلو شاعرانو تپوس پښتنه کوي۔ جبار لالا یو درونډ پښتون

دے ډېر مېلمه دوست د غم ښادۍ سړے دے . تر خپله وسه د بې وسه شاعرانو ملګرو مرسته هم کوي او د پښتو ژبې د پالنې او روزنې دپاره خپله برخه کار ښهٔ پهٔ راستۍ تر سره کوي.

جبار لالا 1946ء کښې پهٔ ټوپۍ کلي کښې زېږېدلے دے اتمه پورې سبق ئې خپل کلي ټوپۍ کښې حاصل کړے دے . اوولسم جماعت امتحان ئې پهٔ لوئې لاهور کښې پاس کړے دے.

شاعري ئې د پينځلس شپاړسو کالو پهٔ عمر کښې شروع کړې ده . جبار لالا وائي چې پهٔ 1960ء کښې چې کومه کشتۍ ډوبه شوې وه نو پهٔ دغه حادثه ما پهٔ اول ځل دا چاربېته ليکلې وه.

بېړۍ وه د کهبل شوه ډوبه پهٔ درياب

نن ټول عالم ژړېږي وريسې کوي ارمان

پهٔ ورځې د طوفان

جبار لالا د ژوند زياته برخه اول پهٔ پاک فوج کښې او بيا پهٔ متحده عرب اماراتو کښې تېره کړې ده پهٔ دې وجه ورته پهٔ ادبي غونډو او استاذانو سره د ناستې او زدکړې موقع نهٔ ده تر لاسه شوې او د خپل کلام اصلاح ئې هم د

چا استاذ شاعر نه نهٔ ده کړې۔ جبار لالا اولسي شاعر دے ۔ پهٔ کلام کښې ئې چاربېتې ، غزلې ، رباعیانې ، شاملې دي ۔ د اتمان ګدون بلکه د صوابۍ پهٔ شاعرانو ئې یو اوږد نظم لیکلے دے چې د صوابۍ د اکثرو کلو د مړو او هم عصرو شاعرانو ذکر ئې پکښې کړے دے ۔ جبار لالا پهٔ خپلو شعرونو کښې د خپلو خیالاتو او او جذباتو اظهار ښهٔ پهٔ ډاډ کړے دے ۔ شاعرۍ کښې ئې عشق ، محبت ، هجران ، بېلتون ، پند و نصیحت ، او اسلام سره سره د میني موضوعات بیان کړي دي۔

جبار لالا د خپلې شاعرۍ پهٔ باره کښې وائي!

د ردیف او قافیې نه خبر نهٔ یم
څهٔ پهٔ وزن او سجعې برابر نهٔ یم

دانشور کهٔ تنقید کاندي حق جانب دي
دومره زهٔ د شعرونو ماهر نهٔ یم

فقط ذوق یم پهٔ لیکلو مجبور کړے
خپله لیکم د سرقې شاعر نهٔ یم

د جبار لالا ځنې رباعیانې ډېرې مزېدارې لیکلي دي پهٔ خپلو رباعیانو کښې ئې ډېر د رنګین خیالاتو اظهار پهٔ ښکلو ټکو کړے دے. د رباعیانو دا شعرونه ئې پهٔ فن پوره د خوند او سوز او ساز نه ډک دي.

کار خېر دے پکښې لویه مرتبه ده
کهٔ یتیم پهٔ سر دې کېښود د شفقت لاس

هیڅ مې طمع د خوش رنګه جانان نهٔ شي
چې به راکاندي پهٔ وخت د مصیبت لاس

دا مې واورئ فائده نهٔ وي یارانو کښې
لکه نهٔ وي چې فائده عبس خوارو کښې

د نمر مخو له محفله لرې ګرځه
ګېر چې نهٔ شې نور د مینې زولنو کښې

تر مطلبه یارانې دي شومه پوهه
بې مطلبه یاران نشته پهٔ دهر کښې

مال دولت چې نۀ لري عبدالجباره
وي کمزورے به د هر چا پۀ نظر کښې

جبار لالا پۀ عشق کښې د بېلتانۀ د ناسازو او د معشوقو د جفا متعلق څۀ داسې اظهار کوي۔

بېلتانۀ دې اشنا دومره ناقرار کړم
دا د هجر شپه تېرېږي سم د کاله

د دیدن لارې دې ډکې د ازغو دي
نۀ پوهېږمه چې ښنګه درشم تاله

اوس رائځ چې د جبار لالا د یو غزل د شعرونو نه خوندونه واخلو چې د مینې محبت آئینه دار غزل دے۔

ښکلیه تا کۀ پۀ مسکي نظر کتلے نۀ وے
ما به زړګے پۀ یو نظر باندې بائېللے نۀ وے

کۀ د خوبانو دیدنونه پۀ اسانه کېدل
پتنګ به ځان پۀ سرو لمبو باندې سېزلے نۀ وے

کۀ مینه نۀ وے محبت نۀ وے دا خیال به نۀ وۀ
عبدالجبار سهل به دا غزل لیکلے نۀ وے

عالمان وائي چې عشق مجازي د عشق حقیقي اولنۍ پوړۍ ده ۔او ډېر عاشقان د مجاز پۀ لار حقیقت ته رسېدلي دي۔ جبار لالا هم چې د ښکلو پۀ ناپائېدار حسن او جفاګانو پوهه شوے دے نو د حقیقت پۀ لار روان شوےد ے لکه چې وائي:

چې پۀ ذکر اموخته د رب غفار شوم
هیله زۀ پۀ سکون باندې بې سیار شوم

کۀ هر څومره دلبرۍ مې ژوند کښې اوکړې
وار پۀ وار باندې د دواړو توبه ګار شوم

اکثر زمونږ مشران شاعران چې ددنیا نه سترګې پټې کړي نو ورسره ددوئ شعر و شاعري هم دفن شي ۔ خو جبار لالا پۀ دې حقله خوش قسمته وۀ ۔ الله ورله ډېرقابل او تابعدار بچي عبدالرب ، حامد رحمان ، خالد رحمان ، محبوب رحمان ، ورکړي دي ۔ بیا پۀ خصوصي توګه د محبوب رحمان او د خالد رحمان دا خواهش وۀ چې

زمونږ د محترم والد صېب دا کتاب ددوي پۀ ژوند چاپ شي ـ هيله لرم چې پښتانۀ به د عبدالجبار لالا او توراج خاکسار صېب ددې خوندورې اولسي شاعرۍ قدر اوکړي چې د پښتو جولۍ کښې ئې حصه واچوله ـ

علي زر خان علي
ستر سبکتر "ملګري ليکوالان ضلع صوابۍ"

# حمد

بې د ستنو دے قائم آسمان د رب
پۀ قدرت سره آباد جهان د رب

چې الله پۀ څۀ رضا وي هغه کيږي
پۀ رښتياو سره اوچت دے شان د رب

چې معمور پۀ کليمه د الاالله شول
مومنان دې کړي ادا احسان د رب

کافران او مشرکان ټول پۀ ژړا شي
پۀ جنت چې شي داخل نبيان د رب

ته به وموميې جنت **عبدالجباره**
کۀ دې اومنو پوره فرمان د رب

# غزل

بې نقابه حقیقت له چې سرشار شي
د بې عېبه صداقت پۀ نښه لار شي

زۀ به ښنګه خوشحالي او خندا وکړم
چې پۀ لار د اخرت زما رفتار شي

تۀ چې نۀ غواړې هغه نۀ کیږي خدایه
تۀ چې غواړې هغه کیږي ستا اختیار شي

تۀ خالق ئې تۀ مالک ئې پاکه ربه
د قدرت نه دې مخلوق واړه ناچار شي

ربه دا به دې پۀ ما مهرباني وي
چې د سهل تور لحد دارالقرار شي

د توپی **عبدالجباره** نېک بختي ده
چې د ګوتو پۀ بندونو الله شمار شي

# غزل

مُتحیر دي پۀ تا واړه کائنات
لوئي احسان دے پۀ دنیا دې د حیات

د یوسف ؑ حسن جلوه ده ستا د حسن
د نمرود کسریٰ غرور دې کړلو مات

صدۍ تېرې تر حشره به شي تېرې
همسري به دې څوک اونۀ کړي د ذات

محکومات دې حاکمان کړل پۀ هر لوري
سر دې خم کړو د عزیٰ لات ومنات

ستا تخلیق خلق عظیم باندې دے شوے
لوئې یو بحر بیکراں د کرامات

معجزه دې د قرآن دنیا ته پېش کړه
منسوخ شو پرې انجیل ، زبور ، تورات

ستا مقام د ادراک فهم نه بالا دے
شمار دې نشته پهٔ دنيا د احسانات

ډېر باغيان دي د الله سره پهٔ خلا کړل
سيئات باندې غالب شو حسنات

څوک چې ستا د پيروئ څنې محروم دي
ښکاري بِر کهٔ هغوي لَر دي کړي هېبات

زهٔ **سهل** ستا پهٔ در باندې ګدا يم
دا باعث ګڼم د فخر لمحات

# غزل

د زړۀ سَوے مې زیاتېږي نۀ شو کم
دا هجران راته جوړېږي ابېتم بم

د مرض علاج مې نۀ شي داسې ښکاري
چې خوړلے مې ګزار پۀ زړګي سم

وه د زړۀ سره راڅه چې سره کښېنو
هېر زما به شي ستا هر جور و ستم

ډېره ښۀ وه د وصاله خبر نۀ ووم
چې خبر شوم اوس مې ځي د سترګو نم

د ژوندون طمعه پۀ داسې حال کښې څۀ وي
بس تېرېږي ځي دې شپې ورځې د غم

اسویلي به پۀ تحفه کښې ورله ورکړم
د **سهل** د زړۀ ارزو کۀ شي محکم

# غزل

پوهه نۀ شوم چې پۀ څۀ دې قصور وار کړم
بې سببه دې زړګيه زۀ پۀ دار کړم

دوست وئېل خو پۀ خلۀ بل ته ډېر اسان وي
پۀ مفهوم به ئې نا اشنا څۀ خبردار کړم

افرين مې پۀ دوستۍ د ابراهيم ډار شي
تل تعريف به د افسر امان نوښار کړم

سر و مال قربان د **سهل** د هر ياره
خدائے دې نۀ کړي چې د چا زړګے ازار کړم

# غزل

رب داخل کړم دوباره پۀ امارات
ترک ما کړل د اغیارو تعلقات

د غم پیټې کۀ مې سپک یا مې درانۀ وو
شُکر ګزار وومه د اللّٰه پۀ هر حالات

د ازمېښت ګهړۍ شوې تېرې وې هر ښنګه
وې محکمې تجربې د کمالات

اشنایۍ د دنیا واړه دي فضولې
تېر ژوندون کړئ د اللّٰه پۀ احکامات

د مبلغ دعوت به هیڅ کله رد نۀ کړم
عیان ماته پۀ دې لاره شو نجات

قدردان زۀ د تهوپۍ **عبدالجبار** یم
موجزن لرم پۀ زړۀ کښې نېک جذبات

# غزل

بې قوته مې ثابت شول دست وپا هم
رفتن شو پهٔ سهاره مې د همسا هم

بل راوړي نهٔ خپلېږي هر څوک وائي
پاتې نهٔ شوله نن خپلو کښې وفا هم

پهٔ دې لړ ژوندون به څهٔ څوک باور کاندي
دې ژوندون سره تړلې ده فنا هم

ځان ځاني ده د نفرت بازار دے **سهل**
څوک به څنګه د يو بل شي مسيحا هم

# غزل

زهٔ پهٔ طمع تهٔ بې غمه ګرځېدې
خوږ محفل کښې د رقيب مشغولېدې

هره ياري د مخامخ سترګو بازي وي
ډېرې شوي پهٔ دې باب دي ازمودې

پرواه نشته دا تاثر د زمانې دے
نن يوه او سبا ئې نورې ارادې

د جفا نوم به هرګز خور شوے نهٔ وے
د وفا نغمې به هر ځائے غږېدې

کهٔ اخلاص ته د هر اشنا احساس وے
خوږې مينې به تر سره رسېدې

تونس پهٔ سترګو به د **سهل** د زړګي نهٔ وهٔ
کهٔ ترې نهٔ څڅېدې اوښکې بې فائدې

# غزل

پۀ تکليف کښې څوک نۀ وي غم خوار
پۀ راحت ترې هر بنده شي هم کنار

دا ستم د زمانې نۀ دے نور څۀ دي
ورور د وروره جدا کاندي يار د يار

کۀ ثاني دې د چشمانو ما ليدلے
رقيبان به راته نۀ وو د سترګو خار

د ببلتون د غمه هر مئين ژړيږي
د زړۀ پۀ سترګو ژړا کاندي **عبدالجبار**

# غزل

چې هېروي د بل نېکي ورته حېران شوم
چې ترې خبر ګوته پۀ خلۀ پۀ هغه آن شوم

خلق وائي کړي اربونو سره لوبې
پۀ کامرانۍ ئې خپله زۀ آذلان شوم

پۀ يو د مدد لاس او بل کښې تېره ورکړه
پۀ دې متل نن قائل پۀ برهان شوم

بوټي پرې شنۀ پۀ قبرستان چې نېکۍ به ئې ياد لرلې
لاس پۀ دعا ورته پۀ تګ د قبرستان شوم

عمر مې ټول دے بسر کړے پۀ يارو کښې
نن سپين ريشه سر دننه پۀ ګرېوان شوم

ترک ما خوشے يارئ کړے شوم پۀ عېش
زۀ **عبدالجبار** شکر ګزار د پاک سبحان شوم

# غزل

توره شپه کښې چې غماز سره د بر لاړ
ښکاري داسې چې څما نه مرور لاړ

نور اعتبار مې پۀ نمر مخي جانان نۀ شي
خوږ اشنا نۀ مې د زړۀ هغه باور لاړ

تل خزان شو د شهيد پۀ رونقونو
خوندور هم د پيغور ګلې ګودر لاړ

خپل دې نۀ کړو خپل به ئې نۀ کړې **عبدالجباره**
غبر غماز سره چې يار پۀ چل هنر لاړ

# غزل

بې انتها شوه دا ګراني واوره جنابه
غريب کله اخستے شي غوښه د قصابه

د ګرانۍ جرنده کښې دلبرو اے ملګرو
دي مهنګايۍ کړه د هر چا خانه خرابه

نرخنامه د اور پۀ بيعه پۀ رمضان شي
يو نيم څيز شي پۀ بازار کښې هم نايابه

چې بلنه ئې د زړۀ پۀ انتخاب وي
عکاسي ئې وي عيان د مخ کتابه

نادان کله څۀ پوښتنه د خاصيت کړه
لاس رسوي د غېر موسمه تر عنابه

عامو خاصو ته پۀ ګوته دے **عبدالجباره**
آبيات د **توراج** وي ډک د کماله

# غزل

خیال ته مۀ راوله یار دې هغه تلے
پۀ بېلتون ئې چې وې زړۀ تاله داغلے

د بې لوظه اشنا څوک چې اشنائي کړی
وي به هر ځائے پۀ محفل کښې شرمېدلے

د عنکبوت په شان جوړوي هر ځائے جالې
داسې یار باندې مې تل لیاړې توکلے

صورت مۀ ګوره سیرت ته ئې نظر کړه
کۀ د سیرت کردار ئې وي پۀ تول تللے

زۀ سهل کۀ د بې وفا یاره خبر وے
ما به څله د زړۀ کور ته رابللے

# غزل

رښتيا خبره دې کوه ښهٔ پهٔ څرګنده
ځان ساته د کذب د پليد ګنده

تېر ژوندون کهٔ د ايمان پهٔ تقاضو کړې
پهٔ اخر به ئې ثمر مومې **عقل** منده

تش پهٔ رنګ خو څهٔ سيالي د ګلاب نهٔ شي
محنت چې و نهٔ کړې د **بل** نه پهٔ څو چنده

څهٔ کشش چې د اخلاق پهٔ جامه نهٔ وي
هغې **محفل** ته مهٔ ورځه چې وي بې خونده

پهٔ مينه ئې زهٔ **سهل** چې ورله درومم
قدردان لرم ملګري عزت منده

# غزل

وي پوهه کۀ ناپوهه پۀ قافيې
تل بلے شي دانشور د غېر جرګې

ستا د حسن تابنا کښې ئې زړۀ راکاږي
دا کوم دستور دے ساقي ستا د مېخانې

د هجران پۀ کتارو دې زړۀ غوټ مۀ شه
وي پۀ هجر کښې بې مثله انديښنې

کړه تحفه اخر له جوړه **عبدالجباره**
د دنيا چارې دې ټولې بې فائدې

# غزل

ولې نۀ درومې د ښکلي دين پۀ لار تۀ
مدام اورې د ناصح د خولې ګفتار تۀ

مناسب دي تيارے اخر له اوکړې
خبر ځان چې کړې د شرعې د لار تۀ

يوه ورځ به دې سفر د دنيا اوشي
پۀ لږ ژوندون مۀ کوه اعتبار تۀ

دنيا فاني ده د تۀپوهـ **عبدالجباره**
يوه ورځ لاړ شې د دې پۀ خپل وار تۀ

# غزل

څۀ به کاندم د باره کهو پۀ محلونو
خوښ پرې نۀ یم د اسلام اباد پۀ رونقونو

اسلام اباد کۀ وي هر څومره پُر رونقه
بدل به ئې نۀ کړم د خپل کلي پۀ غرونو

د اما کما ټوپۍ کلي ته راغلل
قابض شوي دي پۀ جمله کاروبارونو

ټوپۍ کلے دے اوس ښار **عبدالجباره**
کمے نۀ لري د ښارېې د سهولتونو

# غزل

کۀ پۀ سخته کښې څوک درکړي د راحت لاس
کۀ پۀ حقیقت ئې اوګڼه د صداقت لاس

کار خېر دے پکښې لویه مرتبه ده
کۀ د یتیم پۀ سر دې کېښودو د شفقت لاس

هیڅ مې طمع د خوش رنګه جانان نۀ شي
چې به راکاندې پۀ وخت د مصیبت لاس

خپل مدد زۀ **عبدالجبار** د خدایه غواړم
د زارۍ مې ورته نیولي دي اوچت لاس

# غزل

زما واوره فائده نۀ وي پۀ يارو کښې
لکه نۀ چې وي فائده عبث خوارو کښې

کۀ دې ښۀ د وسه کيږي غنيمت دے
بدي نيشته پُر خلوصه پۀ نېکو کښې

د نمر مخو د محفله لرې اوسه
ګېر چې نۀ شې د مينې پۀ زولنو کښې

ماته اوګوره زۀ **سهل** د ټوپۍ يم
نوم مې ياد دے د ټول اُتمان پۀ تپو کښې

# غزل

کۀ څوک واخلي د نرخونو لړ څۀ جاج
عيان نرخ به ئې کړي د زړۀ ښکلے ډُجاج

بې پوښتنه اخستنه پۀ بازار شوه
تپوس د نرخ پۀ قسم نۀ کوي سماج

د ناکام لمن شلولې مونږ د لاسه
سبقت اخلو د يو او بله پۀ رواج

د يار خيالونو سره لوبې کړم پۀ خواب
پۀ سبب دې د رېبار نۀ يم محتاج

دا منم ګراني راغلې پۀ دنيا ده
خو اصراف کوي هم د کلي ښار ازواج

خود د ناکامه ترې روژه کړه **عبدالجباره**
طعم به څۀ کړي څوک لحم او دُجاج

# غزل

ربه راولې زما هغه جانان بيا
چې ئې اوکړمه ديدار ئې د چشمان بيا

که تمامه دنيا شته زما پرې څۀ
څو چې ښکل ئې نۀ کړم هغه سرۀ لبان بيا

دوستي ښۀ وي چې پُر خلوصه وي صادقه
د اصيل ياره مې شه جان ومال قربان بيا

د زړۀ تاؤ د نظر تنده به ئې شي ماته
**سهل** کۀ اوليدو يو وارې هغه فنان بيا

# غزل

د ردیف او قافیې نه خبر نۀ یم
څۀ پۀ وزن او سجعې برابر نۀ یم

دانشور کۀ تنقید کاندي حق جانب دي
زۀ لا دومره د شعرونو ماهر نۀ یم

د قام قلم لیکوالو ته سلام مې
اوسېدونکے د ټوپۍ د باهر نۀ یم

د ادب پۀ غونډه ما کۀ څوک مطلع کړه
تېز به ګام کړم د هوا طاهر نۀ یم

د هېواد غونډې ته ورغلے ووم پۀ بلنه
احسان فراموش د یوسفزي ذاکر نۀ یم

فقط ذوق یم مجبور کړے پۀ لیکلو
خپله لیکم د سرقې شاعر نۀ یم

د وفا په لټون شومه زهٔ سپين ريشه
څهٔ حاصل د وفا د ګوهر نهٔ يم

ښکلي وولي زړونه په ښو ښکلو
والله زهٔ ئې په خوا او خاطر نهٔ يم

ما پرې کړې تجربې او تجزيې دي
د نمر مخو د وعدو په باور نهٔ يم

دا ليکل د مورنۍ ژبې خدمت مې
باور اوکړئ په **سهل** چې غاور نهٔ يم

# غزل

څه ورڅه پۀ مخه باندې دې ښۀ وي
د ژوندون دور کښې ورځ او کله شپه وي

سپرلے ښۀ وي چې قائم وي پۀ ګلونو
د سوزه ډکه د خزان ظالم چپه وي

اوښکې کله کړي ښکاره اظهار د مينې
ليکن دغسې به زړۀ د چا خفه وي

نصيب کله به د چا د يار وصال شي
پکښې شامل چې د غماز ظالم ښپه وي

څۀ به ټوقې او خندا چا سره اوکړې
ډېر غمونه د **سهل** پۀ زړۀ پراتۀ وي

**عبدالجبار** وائي کۀ مال و زر کښې پټ يم
خو پۀ زوړ ساعت مې هر وخت تلوسه وي

# غزل

الله یاد پۀ بیمارۍ کښې د بیمار شي
درد وغم کښې ئې بې حده تابعدار شي

پېدا کړي مونږ الله یو عبادت له
روزي رسان زمونږ پروردګار شي

بې نقابه حقیقت له حاجت نۀ وي د رېبار
پۀ یادولو ئې کۀ هر یو ګنهګار شي

یو سرشار د محبت له قرار نۀ وي **عبدالجبار**
د الله پۀ مست د **سهل** زړۀ قرار شي

# غزل

نهٔ وي ښهٔ د بې وفاؤ تعلقات
کهٔ پهٔ سمه کښې اوسېږي يا پهٔ سوات

خوشبوئي د وفا يو ګل هم رانهٔ کړه
ساتل عبث مې د ګلونو څهٔ باغات

خپله ګرم وومه د سر و ماله تېر ووم
خبر نهٔ ووم د مينې پهٔ لغات

د خلوص ډکې اشنايۍ وې پخوانۍ
وې شيرينې پهٔ مثال د قند نبات

خدايه ما د بې وفاؤ اشنا مهٔ کړې
چې وي کاړي د تل کلي شاملات

پهٔ خلهٔ شکوه زهٔ **عبدالجباره** د چا نه نهٔ کړم
خو عکاسي له جوړؤمه دا رباعيات

# غزل

چې د وفا نخښه پېدا نۀ شوه دلبر کښې
بیا ئې ځله ځايؤمه پۀ ځیګر کښې

چې زیست روزګار نۀ کړي ناچار به شي ناچاره
څۀ خوشحاله به غریب شي پۀ اختر کښې

تر مطلبه اشنايۍ دې شومه پوهه
بې مطلبه اشنائي نشته دهر کښې

مال دولت چې نۀ لري **عبدالجباره**
وي کمزورے به د هر چا پۀ نظر کښې

# غزل

ښکاري داسې چې وفا نهٔ وه پکښې
وه لباسي مینه رشتیا نهٔ وه پکښې

سوچ مې واخلي چې نظر خو دهوکه نهٔ شو
کهٔ خوبي د یو اشنا نهٔ وه پکښې

پهٔ حالات مې د ګلشن افسوس ظاهر کړو
د بلبل بورا صدا نهٔ وه پکښې

چې ترې طمعه دا زما د دلاسې وه
هغه څهٔ د سود وېنا نهٔ وه پکښې

پهٔ شنو تېغو مې سینه سورې سورې شوه
وې تیارې هر خوا رڼا نهٔ وه پکښې

مړاوے زړهٔ چې د **سهل** به ئې خوش خرم کړو
د کشش هغه ادا نهٔ وه پکښې

# غزل

چې پۀ ذکر اموخته د رب غفار شوم
نو هيله زۀ پۀ سکون باندې بې سيار شوم

کۀ هر څومره دلبرۍ مې ژوند کښې اوکړې
وار پۀ وار د هره ياره پۀ دار شوم

د مبلغ دعوت وۀ ماته د مودې نه
ځکه زۀ د نېک دعوت ئې تابعدار شوم

د دنيا دا چارې واړه وې فضولې
زۀ **سهل** پۀ اغاز ئې د اذکار شوم

# غزل

خدايه کله مې اشنا به شي ملګرے
زۀ د يار او يار زما به شي ملګرے

د يارۍ به ئې هيڅ کله توبه نۀ کړم
امېد کړم چې نن سبا به شي ملګرے

کۀ تنها چرته کښې ځې ملګرے ګوره
ستا د لارې مشغولا به شي ملګرے

دا ملګري د دنيا نه تنها درومي
تور لحد کښې څوک پېدا به شي ملګرے

نېک عمل کړه کۀ ويرېږې د الله نه
خپل عمل هلته کښې ستا به شي ملګرے

د ټوپۍ **عبدالجبار** ئې سودائي کړم
خوا له کله زما رابه شي ملګرے

# غزل

خواله مۀ ورځه محفل چې وي د ښکلو
شیش ماران ډېر وي اشنا د زړۀ ویشتلو

دې سرو شونډو اننګو ته ئې چې ګورم
ترې شرمیږي هم غنچې غوټۍ د ګلو

هیڅ ترې طمع د وفا هم ذره نۀ شي
دام ئې ایښے پۀ هر ځائے د ګېرولو

خوشبوئي د وفا نۀ لري **عبدالجباره**
شونډې سرې کۀ تورې سترګې ئې د کجلو

# غزل

چې مې راغلو د زړۀ کور ته مهمان نوے
ډېر پۀ مينه پۀ کتو شو فنان نوے

ما وې ولې د حسرت پۀ نګاه ګورې
دۀ وې ودې موندو بيا يو جانان نوے

ما وې راز کۀ د ياری زمونږ څرګند شي
دۀ وې شي دې پۀ کم بختو عيان نوے

ما وې زۀ به دې د غم پنډونه اخلم
دۀ وې زۀ دې شوم د سختو دُخان نوے

ما وې سرې شونډې دې ښکارې ګلابونه
دۀ وې دا دې شو د ګلو بستان نوے

ما وې شونډې دې پيالې دي **سهل** څښل کړه
دۀ وې کړم به ئې پۀ لبو سُکران نوے

# غزل

نۀ پوهېږمه سحر کۀ مازيګر دے
ناقراره مې زړګے اوتر اوتر دے

بلبل زړۀ مې تمنا کړي د ګلونو
بهار تېر شو د خزان سپېرۀ نمبر دے

دا تسبې پۀ لاس جامه کښې د شپخانو
دا غماز پۀ ترخ نيولے پټ خنجر دے

خپل غمونه مې هېر کړي د يار غم کښې
خوږ اشنا د **سهل** بيا هم مرور دے

# غزل

وخت وي کله ماسره چې درشم خوا له
غم ښادي پۀ کلي کور کښې شوه محاله

ببلتانۀ دې اشنا دومره ناقرار کړم
دا د هجر شپه تېرېږي سم د کاله

د ديدن لارې دي ډکې د ازغو دي
نۀ پوهېږمه چې څنګه درشم تاله

چې د خيال مانۍ کړمه سازه خوا له درشم
پۀ يو "نا" مې کړې اسره ټوله ملاله

د کم اصلو د يارۍ نه مې توبه کړه
باغيچه د زړۀ مې شوه اصيلو سره نهاله

د غزل صفت ئې څکه زۀ **سهل** کړم
هر يو بيت د طوراج وي معمور د کماله

# غزل

کهٔ ئې رقیب سره یاري وي یار مې نهٔ دے
کهٔ ئې مینه بازاري وي یار مې نهٔ دے

چې د راز خبره بل ته مې څرګند کړي
کهٔ هر څومره اعتباري وي یار مې نهٔ دے

د سرو شونډو پهٔ مُسکا ئې دهوکه نهٔ شوم
کهٔ ئې سترګې اثري وي یار مې نهٔ دے

د رقیب او د **سهل** یاري کړي بَرغه
ښکلے یار کهٔ عصري وي یار مې نهٔ دے

# غزل

شپه کۀ د هجران وه اخر تېره شوه سبا شو
ورکې اندېښنې شوې چې ښکاره مې دلربا شو

ټولې کلۍ ګل شولې فضا پرې شوه رنګینه
وږمې د پسرلي شولې خزان ظالم فنا شو

هر طرف ته غم وۀ څۀ اُمېد د خوشحالۍ نۀ وۀ
ګډ چې پۀ ګلشن شوم ورک د خیاله مې بیدیا شو

سترګې چې کېمرې جوړې د کوم عکس دپاره وې
ټیک هغه تصویر دې پکښې وینم رونما شو

رانغے حاجت پکښې رېباره د منت زارۍ
ووم چې منتظر ئې بس پۀ خپله پۀ رضا شو

اوتې بوتې نۀ دي هر کلے د چا دپاره دے
څۀ چې دے **سهل** د یو **سهل** حق کښې ګویا شو

# غزل

هر یو غم دې راپۀ سر کړو پۀ رقیب تا مې اختر کړو
زۀ دې داسې در پۀ در کړم جفا ستا شوه ظالمانه

دا به زۀ کله هېرومه ستا ستم به دریادومه
پۀ زړۀ داسې دې پرهر کړم نم مې څاڅي د چشمانه

غمونه تا پۀ ما انبار کړل فاش دې رازونه پۀ اغیار کړل
لاهو زۀ دې پۀ یو بحر کړم دا دې څۀ وکړل بې ایمانه

ګیله دې تا نه زما کېږي پرهر دې زړۀ مې نۀ رغېږي
زۀ **سهل** دې غم اکثر کړم مستقبل ستا دې شي روښانه

# غزل

چې پاک رسول ؐ د دنیا لاړو څوک به نور پاتې شي
کوچ به اخر وکړې ضرور تانه به کور پاتې شي

خاوند د لوئي قوت الله دے چې زوال نۀ لري
بل پۀ دنیا کښې به د کوم زور او زور پاتې شي

مخکښې سختئ د قیامت شته پۀ خندا خوب کومه
ارمان به وکړمه پرې ډېر چې مې مخ تور پاتې شي

مشال دې بل کړه ښۀ عمل کړه پښېمانه نۀ شې
د بد عمل خاوند به هلته کښې مخ سپور پاتې شي

جبر د ظلم پۀ مظلوم باندې یکدم تېر شي
سزا د ظلم د ظالم پۀ ذمه پور پاتې شي

ډېر د ګټات ځائے دے یه **سهله** غفلت اونۀ کړې
نېکان به بیا مومي جنت غافل پۀ اُور پاتې شي

کۀ څۀ لیکئ زما ملګرو پۀ پښتو کښې لیکئ
ښکلې غزلې رباعیانې او قطعو کښې لیکئ

د اغیار پۀ ژبه خو یو لفظ زمونږ د ژبې نۀ شي
تحریر ئې څله اخستو پۀ خرڅېدو کښې لیکئ

محنت پرې اوکړئ چې بالا شي پۀ دنیا مو ژبه
سحر ، ماښام او کۀ د وخت پۀ تورو شپو کښې لیکئ

کړئ خورې د زړۀ صدف نه ملغلرې ښکلې
مانند **سهل** کۀ یو شعر پۀ څۀ ارزو کښې لیکئ



ګلونه چې یو ځائے شي هارونه جوړوي
دردونه چې یو ځائے شي فریادونه جوړوي

پهٔ سرو شونډو خندا کړي اشنا مې دے ډېر ښکلے
ډېره ماسره وفا کړي زړهٔ زما ئې دے ساتلے
چې پهٔ لمسه د غماز شي نو جنګونه جوړوي
دردونه چې یو ځائے شي فریادونه جوړوي

د بهار ګلونه واړه د یار د ښائست زار
دي پهٔ سمه او کهٔ پهٔ شاړه واړه ترې نثار
پهٔ ښائست د ښکلي حسن بهارونه جوړوي
دردونه چې یو ځائے شي فریادونه جوړوي

دیدن د یار مدام مزه کړي صبح و شام
صدقه کښې چې ګلفام کړي شونډې پهٔ انعام
پهٔ لذت د خوږو شونډو چې خوندونه جوړوي
دردونه چې یو ځائے شي فریادونه جوړوي

پۀ الفت کښې د خوږ یار شوم سر پۀ کُندرو شاړو
پۀ فرقت کښې زۀ **عبدالجبار** شوم وړوند پۀ سترګو دواړو
د سترګو مې نم څاڅي سېلابونه جوړوي
دردونه چې یو ځائے شي فریادونه جوړوي

# غزل

اختر خو راغے وعده ستا به وفا کیږي کله
شپه د فراق او بېلتانهٔ به رڼا کیږي کله

سجدې زمونږ د الله پهٔ در د عاجزۍ وي مدام
د کرونا پهٔ حق به زمونږ دعا قبلیږي کله

د تن وینې دې ګرانې وروڼو زمونږ اوچې کړې
وعده د سرکار د ارزانۍ پهٔ رښتیا کیږي کله

د زړهٔ داغونه د **سهل** پولۍ او ډکې خلې نیولې
د رب دپاره به دې زړهٔ اشنا نرمیږي کله

# غزل

راغله ناڅاپه پۀ توره شپه راغله
دا پۀ اودو چې زلزله راغله

کړې تباهي وه پۀ ماضي کښې زلزلې
رایاده مې زړګي ته هغه واقعه راغله

الله هم اوربدنګے قبلوونکے دے د توبې زمونږ
کۀ پۀ صدق مو زمونږ خلې له توبه راغله

ورور د وروره نن بې زاره زۀ **سهل** وینم
ورور ته نن د وروره خوږه پېسه راغله

# غزل

غوښې د مړ ورور خوري پۀ غیبت باندې
شې به ډېر رسوا پۀ اخرت باندې

دا به زما برخه وي د چا نه ګیله نۀ کړم
لیک وي د ازله پۀ هر بخت باندې

د خلقو نه خلاصېږمه کۀ غوث د زمانې شم
د هغه ټول مې دي بد خواه پۀ حقیقت باندې

ما **سهل** سره ئې چې وصل کړي قصدا ئې کوم یاري
کۀ جامې پرې زما رنګ شي پۀ تهمت باندې

# غزل

وينمه ئې پۀ سترګو چې اغيار دے ورسره
وګورئ ملګرو چې مې يار دے ورسره

زۀ وايم غماز دے تاسو وايئ چې رقيب دے ستا
دے کۀ هر ظالم خو همکنار دے ورسره

پۀ غشو د هجران ويشتل د اشنا نۀ دي
داسې معلوميږي غماز خوار دے ورسره

ولې به ئې صفت د يار او د يارۍ نۀ کړي
پۀ ياد کښې ئې چې نوم **عبدالجبار** دے ورسره

# غزل

تصویر د تصور د خیال لیدو سره راځي
یادونه دې خوارۀ د اوسېلو سره راځي

رایادې مې شوې شونډې شیرینې د نبات
دردونه مې د زړۀ یاره شو ډېر زیات
ریبار کۀ درلېږمه نو د ګیلو سره راځي
یادونه دې خوارۀ د اوسېلو سره راځي

بې غمه یاره تۀ کوې ښکلې موجونه
دردونه زما زړۀ ژړا کړي فریادونه
زخمونه مې زړۀ ستا لیدو سره راځي
یادونه دې خوارۀ د اوسېلو سره راځي

وائي **عبدالجبار** چې څوک یار لري خوش رنګ
متاع لري هر رنګ چې وي مئین پۀ ناموس ننګ
ګلونه د وصال ښکلو غنچو سره راځي
یادونه دې خوارۀ د اوسېلو سره راځي

# غزل

لکه سپرلي کښې چې ګلونه خوند کړه
داسې زړګي کښې مې داغونه خوند کړه

طبيبه ته پرې مرهم مۀ لګوه
د زړۀ سېزلي پرهرونه خوند کړه

چې سترګې ئې ډکې د نشو مدام
د هغې ښکلې محفلونه خوند کړه

د زړۀ پۀ کور کښې چې ما سهل مېلمه کړو
د مېلمه ښکلي مدارونه خوند کړه

# غزل

نور دې پرې څۀ لښ زړونه ویشتلي دي
چې ګورې مې پۀ مړاؤ سترګو ته

در به ئې پۀ رضا کړم ژوبلوې مې زړۀ
زړۀ مې کړه وریورې مړاؤ سترګو ته

جنګ چې وي د سترګو پکښې زړۀ لښي
زۀ به ئې حواله کړم مړاؤ سترګو ته

شي به د **سهل** پرې اخري سلګۍ
کۀ اوکړې اشاره دې مړاؤ سترګو ته

# غزل

پۀ مینه ما چې به کړل هغه ګلونه څۀ شول
جانانه تا چې به کول هغه لوظونه څۀ شول

ننګ و ناموس ته دې دلبره زما ونۀ کتل
تهمت پۀ ما چې لګېدو هغه داغونه څۀ شول

پکار دې سخته کښې پردې او خپل راغلي نۀ وو
دا مدام ما چې دې ژړل هغه غمونه څۀ شول

زۀ د ټوپۍ **عبدالجبار** تانه تپوس کوومه
پۀ تندي تا راته نیول هغه لاسونه څۀ شول

# غزل

دوبې ته مزدورې له هر ناچار راغلے دے
د همزولو د سیالۍ نه هم مالدار راغلے دے

سمه وي دې ځان لاره د حسرت جولۍ پهٔ لاس
محنت کش کهٔ هُنر مند ورته معمار راغلے دے

ده هر چاته معلومه د دوبې سخته ګرمي
ډېر تنګ ئې د ګرمۍ نه مزدور کار راغلے دے

دا خلق پرې غورېږي چې راوړے ئې دے دولت
څوک ترې څهٔ خبر دي کهٔ قرضدار راغلے دے

ووې برخوردار راته ورله لاس ورکول غواړي
پهٔ وزټ یو ځلمے د کلي انبار راغلے دے

ماوې اوبه ئې کړې الله خو منډه تړله به **سهل** اوکړي
شهاب پهٔ حسرتونو کهٔ د مور پلار راغلے دے

# غزل

چې نۀ متاع دې پکښې شته او نۀ تاوان رقيبه
بيلوې خله مې ظالمه تۀ جانان رقيبه

يار ته هوا کښې محلونه او باغونه ښائي
ولې شوده پۀ ګټو وولې ته اسمان رقيبه

ته د تهمت پۀ غونډو ما په عامو خاصو وولې
ډېر دهوکه باز راته ښکاره شوې بې ايمان رقيبه

يار خو لاسونه د يارۍ چې راکړل ما **سهل** له
پۀ مېړو سر شو اوس شلوه دې ګرېبان رقيبه

# غزل

شپه کښې چرته تلے وې غلا باندې
چا سره مشغول وې مشغولا باندې

ته مې خپلولې څۀ چې مې ترک کړل
ودې کړو اغاز نن پۀ جفا باندې

ما وې ځان به خاورې تا به کړم ګلشن
د مينې باغ به جوړ کړم پۀ وفا باندې

زړۀ مې زړۀ تسليم کړے وے چې لرې به څۀ وفا
وائې ړولمه بيا پۀ بې وفا باندې

خپل حسن پرست زړۀ ته حېران **سهل**
اوړے ترې تا زړۀ دے پۀ رضا باندې

# غزل

ولور پرې اخلي خوشحالیږي پرې ښکلي جوړوي
د مکتب دپاره ورته وسوسې جوړوي

د زلفو خیال ئې د چا پۀ زړۀ چې نۀ شي
جونې پردې له ښکلې برقعې جوړوي

دغه سبق د نبي پاک ؐ یو فرمان راکوي
عرب ملکونه ورله سکولونه مدرسې جوړوي

د خونړي نظام پۀ حق کښې نۀ یم
کۀ د ایمان نیمې حصې له فتنې جوړوي

ترې مې قربان شه پۀ ناموس ئې ارمانونه واړه
بې وسي خپله مې ګویانه حوصلې جوړوي

کوم دستور د رقابت د اندېښنو دے **سهل**
کوم دانشور به پرې ردیف او قافیې جوړوي

# غزل

پۀ اتفاق باندې ملګرو هر کار سر ته رسي
کۀ ډلې ډلې شو فائده به غېر بشر ته رسي

راځئ يو موټے يو اواز شئ دا نفاق ختم کړئ
د خود غرضو واک دارانو هغه واک ختم کړئ
ورسره ګورو به خبره کۀ ډغر ته رسي
کۀ ډلې ډلې شو فائده به غېر بشر ته رسي

چې اتفاق زمونږه وي ورونړو کامياب به يو تل
کۀ د نفاق پۀ لاره درومو خراب تراب به يو تل
د بې اتفاقۍ ټولې خبرې ګورے شر ته رسي
کۀ ډلې ډلې شو فائده به غېر بشر ته رسي

زۀ **عبدالجبار** هريو ورکر ته نصيحت کوومه
د پاکې مينې ورورولۍ ورته منت کوومه
مينه نيشنل سره لرمه غږ مې غر ته رسي
کۀ ډلې ډلې شو فائده به غېر بشر ته رسي

# غزل

ګيلې مې درنه کيږي ستا شکوې مې اوربدلي دي
تۀ يوائې نۀ ئې کچه وعدې چې د هر ښکلي دي

د ګلونو جولۍ ډکه کۀ سترګو سترګو کښې مسکے شوې
د فرېب داسې حربې د عشق پۀ باب کښې مې لوستلي دي

لا تر اوسه پوهه نۀ شوم حقيقت کۀ افسانه ده
د حسرت پۀ ميزانه کښې داسې ډېرې ما تللي دي

پلوشې د خپل جمال خورې ورې کړي پۀ محفل
زړونه وار خطا کړي اندېښنې ئې ما ليدلي دي

سازوي غنچې د ګلو کۀ راښکي پۀ زمکه کرښې
وايمه پۀ جار ما سهل ترې لاس وينځلي دے

# غزل

چرته چې د يار سره د يار خبرې جوړې شي
هلته د رقيب او د اغيار خبرې جوړې شي

دوه مئين چې يو ځائے شي وعدې د تلو راتلو اوکړي
لارې بيا ساتي د انتظار خبرې جوړې شي

دوه مئېن چې کله مرور د يو او بله شي
بيا پکښې د صلحې د رېبار خبرې جوړې شي

يو بل ته حالونه د خپل زړۀ او د کور ووائي
تل د دوؤ کم عقلو چې پۀ لار خبرې جوړې شي

زړۀ د سود پرستو هلته ولږي بيا ځي راځي
کوم ځائے چې د نفعې او روزګار خبرې جوړې شي

نه جار اوځي سر لکه پتنګ د اور پۀ سر نيسي
چا سره د **سهل** چې پۀ جار خبرې جوړې شي

# غزل

تور بانړۀ ئې ښکلي زړونه پۀ څنبل تولوي
لکه څوک چې دُر نایاب پۀ ډېر چل تولوي

ډېر اُمېدونه مې تړلي اشنا تاسره وو
دا ګل شیندلے پۀ رقیب چې دې یو بل تولوي

کۀ رابرسېره پۀ حالاتو د زړۀ صدف نه مې شوې
وخت به د مخ نه مې د اوښکو لعلونه تل تولوي

د بې رُخئ ګیلې به څنګه د پردو نه اوکړم
نن ما سهل نه چې خپلوئ لړونه خپل تولوي

# غزل

تصویر د تصور د خیال لیدو سره راځي
یادونه دې خوارهٔ د اوښکلو سره راځي

را یادې مې شوې سرې شونډې شیرینې د نبات
دردونه مې زړهٔ یاره ډېر شو زیات
درلېږم کهٔ رېبار نو د ګیلو سره راځي
یادونه دې خوارهٔ د اوښکلو سره راځي

بې غمه یاره تهٔ کوې ښکلې موجونه
دردونه زما زړهٔ ژړا کړي فریادونه
دردونه مې د زړهٔ تېزو چپو سره راځي
یادونه دې خوارهٔ تېزو چپو سره راځي

وائي **عبدالجبار** چې څوک یار لري خوش رنګ
متاع لري هر رنګ کهٔ وي مئین پهٔ ناموس ننګ
ګلونه د وصال ښکلو غنچو سره راځي
یادونه دې خوارهٔ د اوښکلو سره راځي

# غزل

اختر راغے وعده ستا به وفا کيږي کله
توره شپه د بېلتانهٔ به رڼا کيږي کله

سجدې زموږ د الله پهٔ در د عاجزۍ وي مدام
د کرونا پهٔ حق به زموږ دعا قبليږي کله

د شهيد شوندې چې د فخر نه مسکۍ وې ماته
خوب کښې ماته يو وارې پهٔ خندا کيږې کله

د تن وينې وينې دې ګرانۍ وروڼو زموږ اوچې کړې
د کرونا پهٔ حق به زموږ دعا قبليږي کله

چې بې ګناه ئې محافظ ټافيه سترے کړلو
کهٔ کوم دستور پهٔ عدالت به سزا کيږي کله

د زړهٔ داغونه به د **سهل** هم پولۍ پولۍ شي
د رب دپاره به اشنا زړهٔ دې نرميږي کله

# غزل

خوږه مې دا پښتو ده مورنۍ ژبه
د وخت د سليمان ع ده پخوانۍ ژبه

پت لري ښېګړه او بې مثله توريالۍ
اغيار دې کړي ثابته ارينۀ ژبه

ټکي د اغيار پکښې پېوست نۀ کړي
ښکلے خپله وائي افغانۍ ژبه

زۀ **سهل** ادب له پرې ليکل کووم
د شعر و شاعرۍ ده لرغونۍ ژبه



را پۀ زړۀ مې شو د مرحوم سخي صېب سخاوت
دروغ نۀ دي واقعه ټوله مې ليدلې حقيقت

وړومبے سوال ئې د بخښنې د الله کرم
رب نصيب دې کړي د مرحوم شيخ مغفرت

يو سوالي ئې خوا له راغلو سوال دپاره
موجود خپله ورسره ووم هغه وخت

وې بزرګه څنګه ئې راغلے خبر ما کړه
رب راوستے زما خوا له کوم نوبت

عمر ستا د مزدورۍ نۀ دے ضعيف ئې
الله دې اوکړي پۀ تا فضل د رحمت

فقير ووې صاحبه ستا خبره قيمتي ده
پۀ ځان کښې نۀ وينم د کار څۀ قوت

خو زړۀ مې غواړي چې لور کشره وادۀ کړم
مشرۍ لوڼه مې وادۀ کړي پۀ شان او شوکت

د هغه ارمان چې يو نۀ سمه ګور ته
ورله پکار دے د الله مساعدت

دوه ځامن مې د وادۀ نه پس جدا شو
خبر نۀ ووم د هغوي د رزالت

پۀ پټ لاس شبخ فقير له روپۍ ورکړې
وې بيا راشه کۀ څۀ پاتې وي ضرورت

ضعيف واخستې روپۍ شو پۀ ژړا
غريب دواړه لاسه خدائے ته کړل اوچت

د ماضي مالداره ووم خدايه نن سوالي يم
بخښنه غواړم رتل سوالي به مې وۀ عادت

د ماضي امير فقير دې کړم غني خدايه
د صبب پۀ لاس دې پوره کړو زما غايت

شيخ صاحب ورته حيران حيران کاتۀ کړل
مطمئن ډېر شو پهٔ خپل مصالحت

واړه کارونه خدايه ستا د حکمت دي
د ماضي مالدار دې کړو پهٔ نحوست

شېخ صاحب د خپلې وعدې لاج پوره کړو
دستي ادا ئې کړو د نور سامان قيمت

وې پهٔ خوشحالئ دې زر خپله لور وادهٔ کړه
امېد ساته تل د الله د کرم رحمت

ښکلے هستئ پهٔ دنيا شته دے **عبدالجباره**
الله قبول دې کړي د مرحوم صېب دا عنايت



خوارۀ ترې لاړل د یارۍ چې تراښۀ پاتې شول
خوږه جانانه د یارۍ مې څۀ خوارۀ پاتې شول

ته د دهوکو پۀ دام راګېر شوې د غماز د لاسه
د ټګۍ دامونه ئې پۀ مرۍ درته پاښۀ پاتې شول

شومه حېران چې مخ دې واړوۀ د یارۍ نه زما
ډېر مې سوالونه د زارۍ تاته باهۀ پاتې شول

زۀ **عبدالجبار** به مشغولا ورسره تل کؤمه
کۀ څۀ مې یادونه د یارۍ ماته زاړۀ پاتې شول

# غزل

ربه پهٔ مونږه هغه ښكلے دوران بيا راولې
د خوږو زړونو پرهارونو درمان بيا راولې

د پښتو زړونو حال ښكاره وي ربه تاته زمونږ
ربه قبوله مې دعا كړې محبان بيا راولې

مياشت شروع كيږي د رمضان او بيا د اختر خوشحالي
ربه اختر له زمونږ برخورداران بيا راولې

كله خندا شي د انسان چې ضمير وي خفه
ربه خفګان راځي بيل دوستان بيا راولې

زهٔ د نبوي فضل الرحيم دعا كړم غني خدايه
ربه بنديوان د هندوستان بيا راولې



ډېر مې يادېږي وروره ستا ښکلے جمال
عرصه اوشوه ملاقات ونۀ شو پۀ دوېم کال

همېشه کؤم سوالونه پروردګار نه
چې کله شي به غمزده زړۀ مې خوشحال

د هغه ورځ به د اختر مې وي ورور جانه
چې نصيب مې دوباره شي ستا وصال

يو غم خپل دوېم ستاسو راسره شو
خور شوے پۀ ما هم دے د غم جال

پۀ دې نن سبا منتظر ژوند مې تېرېږي
د راتلو دې کؤم سوالونه د ذوالجلال

نجومي زر کړه فالونه راله ګوره
چې به څۀ رنګه راخيژي زما فال

تر کومې به بندي وي زما ورونه
صحیح راته وئېلے هم نۀ شې تۀ حال

زباني خرچه اورمه تل پۀ غوږو
د جوارۍ غوندې بازي ده اخلي نال

نن یوه خبره اوشي او سبا بله
بېرونه ملکونه واوېلا کړي پرتګال

اثر هیڅ ونۀ شي پۀ هیڅ چا هم
مظلومان دې راګېر شوي پۀ بد حال

بې درده د دردمند نه خبر نۀ دي
چې مظلوم شو بې ګناه ورور پائمال

د ارماني دنیا نه زۀ وروره مجبور یم
د لفظونو مې کړل څکه ارسال

ډېر لفظونه مې پهٔ زړهٔ کښېٖ موجزن دي
ښهٔ به دا وي چې ئې نهٔ کړم زهٔ فعال

زهٔ د نیوي فضل رحیم وایمه غني خدایه
زر کړې واپس جنګي قېدیان کؤمه سوال

## غزل

ښکلیه تا کۀ پۀ مسکي نظر کتلے نۀ وے
ما به زړګے پۀ یو نظر باندې بائیللے نۀ وے

کۀ ماته پته وے چې دا تکلیف به ماته رسي
ستاسو د چم پۀ لار به زۀ هډو راغلے نۀ وے

کۀ د خوبانو دیدنونه پۀ اسانه کېدل
پتنګ به ځان پۀ سرو لمبو باندې سېزلے نۀ وے

کۀ تعصب نۀ وے د مینې تسلسل قائم وے
بیا به منصور د دار پۀ سر باندې ختلے نۀ وے

زۀ کۀ مئېن نۀ وے د خپل کلي پۀ ښکلو باندې
ما به د خپل کلي پۀ لارو کښې ژړلے نۀ وے

کۀ مینه نۀ وه محبت نۀ وۀ دا خیال به نۀ وۀ
**عبدالجبار سهل** به دا غزل لیکلے نۀ وے

## غزل

اور د بېلتون زړۀ ته بلېږي ستا پرې څۀ
کۀ پۀ خپل سوي نۀ پوهېږي ستا پرې څۀ

د غم لمبې د ککرۍ نه دې تل تر تله اوځي
مئېن زړۀ پرې نۀ دردېږي ستا پرې څۀ

يو مو الله يو مو رسول پۀ صادقۍ ملګرو
پۀ حق وئېلو مو ژبه نۀ چلېږي ستا پرې څۀ

چې تصور ئې د شاعر پۀ مقصد نۀ شي
کۀ پۀ وزن سجعه نۀ برابرېږي ستا پرې څۀ

پۀ عذابونو کښې غټ عذاب بې اتفاقي وينمه
بې اتفاقي مو ورځ تر ورځ زياتېږي ستا پرې څۀ

داغونه د ستم پراتۀ پرې د ماضي
نور نوي پرې جوړېږي ستا پرې څۀ

يو ښکلے خو څۀ کړې د بې شمېرو دے مسکن مې زړۀ
پۀ زړۀ مې ټول ښکلي ځائيږي ستا پرې څۀ

خپل حُسن پرست زړۀ ته زۀ هم فکر وړے
دے د هر ښکلي زاريږي ستا پرې څۀ

يار او رقيب چې راشي بله کړي لمبه د اور
د ډېره تاوه بيا ورتېږي ستا پرې څۀ

ووې د ټوپې اشرف پۀ زړۀ جوړ کړه غزل
ما وې زړۀ زما کۀ نن دردېږي ستا پرې څۀ

د حسن جوارې کښې خالونه **عبدالجبار** ووليي
پۀ داؤ بېللو نۀ خفه کيږي ستا پرې څۀ

# غزل

پۀ سختـه دې پکار چې يو يار نۀ راځي
پۀ راحت دې شه کنار چې اغيار نۀ راځي

تل به زما ناسته د نمر مخو د **محفل** نه وه
څۀ اوکړم کم بخت زړۀ له قرار نۀ راځي

کۀ وايمه ښامار دے تک به درله درکړي
يقين دې پۀ وښنا مې پۀ صد بار نۀ راځي

ما **عبدالجبار** فضول خوشې يارى اوکړې
نن مرورمه لاسونه خو تبر وار نۀ راځي

# غزل

ورک دې پرې د مينې ټول خوندونه کړل
فاش چې دې رقيب ته مې رازونه کړل

لوټ شومه اعتبار کښې او چانه ګيله اوکړم
تا چې د غماز پهٔ سر ماسره جنګونه کړل

ما وې سر به صدقه کړمه ستا پهٔ يارانه کښې
تا خو راته جوړ ډېر فسادونه کړل

مينه مې خبرازه وه تباه کړه يار ناترسه
**سهل** پهٔ تباهئ ئې خود ويرونه کړل

# غزل

هر ځائے د ممنوع درته تختىۀ اولګېدې
مۀ کړه اورټېک پابندىۀ اولګېدې

شوه جرمانه لس زره هغۀ هم درهمونو کښې
قېنچىۀ نه کۀ شوې بچ پۀ کټارىۀ اولګېدې

څۀ مې لوفر بولې او څوک وائې جوارګر دې
دهبې مې پۀ لمن د بدنامىۀ اولګېدې

څۀ دې وۀ متاع پکښې **سهله** تنها پاتې شوې
نن ټولې دې يارىۀ پۀ کپرئ اولګېدې

# غزل

دور نن د پمپ هاوس دے د سیند غاړه ویرانه
شوق سره ځلمي نهر ته لامبلو له راځي

جوړه جوړه یاران وینم ، خوا کښې رقیبان وینم
کم بخته غمازیان ئې جنګولو له راځي

نادانان پرې نۀ پوهېږي ، هوښیارانو ته ئې علم
څۀ پکښې کم ظرفه زړۀ لوټلو له راځي

د وفا طلبګارانو ځان ترې کناره کړېځ
څۀ پکښې بې فېضه زړۀ ویشتلو له راځي

د حُسن جواري ده درانۀ داؤنه اړدي
**سهل** پکښې کم بخت داؤ بائېللو له راځي

# غزل

کوم دې پۀ يارو کښې يو نېکنام اوکتو
نوم چې دې زما پکښې بدنام اوکتو

د يارۍ پۀ هر يو باب پاڼې پاڼې مې دفتر
تش نوم مې د وفا برائے نام اوکتو

څله ځان له سر خوږے نۀ لري وفا
بې وفا مې پۀ دې باب هر ګلفام اوکتو

ښۀ مۀ کوه بد نشتے څۀ ښکلے متل دے دا
دا متل صحيح **سهل** پۀ هر ګام اوکتو

# غزل

ځهٔ مې ترې نه ویستې دې رفو مې هغه دم کړل
واړه مې د یو ستنې پهٔ سُم کړل

پوهه پهٔ سرور د بې خودۍ نهٔ شو
شېخ ځکه مېخوار ټول پهٔ قسم کړل

د سیالۍ جذبې ئې دومره شوخې پېدا کړه
پهٔ سوچ اخته ئې د ادب ښکلې عالم کړل

دا بې وسه تمنا به زهٔ **سهل** کړم د پښو لاندې
ما **توراج** خو تل پهٔ یو وېنا نعم کړل

# غزل

راشئ اوګورئ ملګرو حال زما
خوردنوش نه مقرر شو فال زما

پۀ سهاره د ډانګورۍ مې دے رفتن
تېز ګام شو اغستل محال زما

پۀ هر حال شکر ګزار یم د الله نه
غفور ، رحیم ، کریم دے ذوالجلال زما

ښۀ پوهه زۀ سهل **عبدالجبار** شوم
متاع نۀ لري فضول اشغال زما

# غزل

لکه مجنون چې به ژړا ځان د لیلیٰ کوڅه کښې
رېباره زهٔ هغسې ژاړم د اشنا کوڅه کښې

کچکول مې غاړه کښې دے څمه د اشنا کلي ته
خبر د وصال به ترې غواړم خامخا کوڅه کښې

خبر دے کهٔ نن بې وفا یار پهٔ کاڼو اوویشتمه
زهٔ به ئې پهٔ مینه مینه اوژاړمه بیا کوڅه کښې

رقیبه مهٔ کوه پېغور د یار کوڅه کښې ژاړم
پېغور به وے کهٔ مې ژړل د بل چا کوڅه کښې

ما د اشنا دیدن کاوو مطلب مِ هیڅ نهٔ وهٔ نور
رقیب چې راغے اودرېدمه وارخطا کوڅه کښې

**عبدالجباره** جوړې مجنون شوې معلومېږي داسې
چې د وفا اواز کوې د بې وفا کوڅه کښې

# غزل

زړۀ مې پۀ دام د اُور بل څله نيسې
ماته رسئ د اجل څله نيسې

د محبت غنچه دې ماله راکړه
اشنا زاغونو ته ګل څله نيسې

زۀ چې راغلے يمه ستا ديدن له
نوراني مخ ته منګُل څله نيسې

کِبر کوې زوال زر به مومې
لمبو ته شال د بخمل څله نيسې

پۀ تا مئين ګنهګار خو نۀ يم
پۀ سرو لمبو مې ګوګل څله نيسې

ماته د شعر لارې ښې معلومې
نوې کوڅې د غزل څله نیسې

**سهل** د شعر شپاړسم پاس کړے
ورته پرچه د اول څله نیسې

# رباعي

مور او پلار چې کړې پۀ غم کښې مبتلا
خدایه مۀ کړې نالائق اولاد د چا

د پښتنو اولاد زار د شرافته
والدین به ئې ساتل ښکلي رضا

بې یقینه اوسنے اولاد ثابت دے
اغستے نۀ شي د مور او پلار دعا

نافرمانه اوسنے اولاد اکثر وینم
اوچتوي د والدېنو نه حیا

بې هنره کۀ انپړها پښتاني وو
پۀ کردار د اوسنو نه وو بالا

پۀ زور زبر ورپسې ما سهل کړل کتب
کړه عیان مې د حقیقت د هغه وېنا

# غزل

یو مو الله یو مو رسول یو مو کتاب
پوهه پۀ دې شي هر هوښیار جناب

پۀ رنګ د خپلو وینو خپرازه کړي آبیات ښکلي
پۀ بهار د ملغلرو سپوا ئې کړې پۀ شتاب

د ذوق هره نغمه ئې د سپرلي غوندې ښکلا کړه
د ګل سره ئې کړي وصل پۀ مثل د مهتاب

پۀ ادب به ئې وي شیندلي د ګلونو جولۍ ډکې
محرومه ترې نه زۀ ووم اورېدو ته ئې یم بې تاب

سرپرست ئې دې تېر شوي دانشور د زمانې
دفن ئې شو اشعار یا پۀ پردو کښې د سحاب

همت ئې د ځوانانو صد افسوس پۀ تن اسانو
تېرېږي ژوند ئې د خانانو د مزدور خيال لري بې حساب

تصور د هر شاعر د خپله خياله وي **عبدالجباره**
کۀ ستا خيالونه شي د چا د پښو تُراب

بعدالعشاء فارغُ النماز
16/10/2023

# غزل

دوه لبانه دې خوارۀ پاستۀ د قند دي
دوه خدنېن دې رومان د ثمرقند دي

ګلونه د اورخاړي رانه ئې غوښتي دي پۀ مينه
پۀ مسکا مسکا ئې غوښتي دل پسند دي

د ګلاب پۀ غوځو څوکو بلبلان هسې چغېږي
پۀ غوں غوں ترې بوراګان واړه سربلند دي

د ګلونو جولۍ ډکه کۀ سترګو سترګو کښې مسکے شي
زړونه وارخطا کړې کشش ئې هنر مند دي

پۀ کليمه د الاالله مسلمان يو دے پۀ صدا
زنګي او ايوبي دواړه تېر شوي جرات مند دي

د اُمېد رڼا ئې ويني پۀ قدرت د پاک سبحان
د لا تقنطو صدا کښې مجاهد ډېر دلبر مند دي

د ژوندون پهٔ کشاکش کښې د توحيد رڼائي غواړي
پهٔ سر تړلي ئې کفنونه کس کړي کمربند دي

د اسرائيل پهٔ جارحيت مومن ولې دے خاموشه
امريکه ده پهٔ ظاهره او مغرب هم شرپسند دي

طريقې د پېغمبر غواړو جهاد له مو ملا ماته
ابټم بم لرو ملګرو عرب هم دولت مند دي

د مودي مرسته پهٔ ډاډه اسرائيل سره پهٔ ډاکه
مجاهد سرفراز کړې پاک وهابه ستا د فضل ارزومند دي

دعا غواړي مسلمين اللهم النصرنا المجاهدين
بريالے کړي فلسطين بد حاله حاجت مند دي

حماس څهٔ تنها نهٔ دے حسب الله پرې غوټه کيږي
خو د الوتکو د حملو نه بې بسه او بې بند دي

څومره شوخ دي **عبدالجباره** د ژوند دا بهارونه
چپې ظالمې د خزان دې نن پهٔ ژوند دي

# "لوئې اختر"

څۀ به کاندمه پۀ داسې لوئې اختر
وینم کور کښې پۀ ماتم هر یو بشر

مسرور خلق خوشحالي د لوئې اختر کړي
زما کور کښې لوئې واړۀ پۀ چغو سر

سوي زړۀ مې کړو ماتم لا د ملګرې
دپاسه راغلو د ورور غم مې لکه غر

متې مې پرې ملا مې ماته پۀ مرحوم ورور شوه
پۀ وروڼو شپږو کښې بالا وو معتبر

تل به ئې غم لکه د نم پۀ سترګو زۀ ورووم
هر وخت به ئې یادومه په دعا شام و سحر

جنت الفردوس او مغفرت ئې د الله نه زۀ **سهل** غواړم
پۀ حکم لایزل ئې ددنیا اوکړو سفر

# نظم "لاهور ښار"

ښکلے به نهٔ وي د لاهور پهٔ مثل ښار يو
حسين پهٔ زنده دِلو دے شاندار يو

درنې هستۍ د لاهور زمکه کښې دفن دي
پکښې معروف دے د داتا ګنج دربار يو

عدلِ جهانګير پهٔ تاريخ کښې رڼائي کړه
پهٔ ټنګ حاضر شوے پهٔ جرس د خِمار يو

پېښور پهٔ خپل ځائے دے پُر رونقه
د خود کشو نه ئې بچ نهٔ دے بازار يو

کراچۍ کهٔ د رڼاګانو ښار يادېږي
وينئ د کِلنګ پکښې همېش ناتار يو

دا درې ښاره معروف دي پهٔ خپل حسن
پښتونخوا کښې پېښور دے مزېدار يو

د خیال پټلۍ مې کړه بدله څم لاهور ته
پکښې یادیږي د مغلو باغِ شالیمار یو

باغِ جناح هم متصل دے د مال روډه سره
شاهي مسجد لري فن د زوړ ادوار یو

شاهي قلعه او مقبره جهانګیر د مغلو نخښې
پۀ پړقا وینئ شیش محل حسن دار یو

د قائډینو غونډه پرې شوې پۀ نظریه پاکستان
اوچت ښکاریږي پکښې هغه ښکلے یادګار یو

انار کلۍ بازار معروف دے معروف تر نۀ
نوم ژوندے لري د مینې پۀ اعتبار یو

لا انتها ارزان طعامونه د فټ پاټ
ګزران ښۀ پکښې کوے شي ناچار یو

شهنشاه عالم وۀ تعمير کړے ياد پۀ شالمي
نوم ژوندے لري د شهنشاه هوښيار يو

د رڼجر زمکه شاړه وه بنجره
پکښې جوړ دے د ملت ښکلے مطار يو

هغه کيږي چې څۀ رب ته وي منظوره
بې د امر د الله نه کيږي کار يو

سرته به ئې نۀ کړي کۀ هر څومره دهوکه مار وي
چا ليدلے دے کامران دهوکه مار يو

اجر ډېر ورته ملاو شي پۀ بدل کښې
کۀ پوښتنې له څوک ورشي د بيمار يو

درې مې ورونړه مقيم دي پۀ لاهور کښې
الله دې شفاع ورکړي مشر ورور مې دے بيمار يو

کۀ د ښادۍ وېنا پۀ عزت ورته اوکاندي
رابه نشي بهانه به جوړه کړي پۀ تلوار يو

منتظر مې د راتلو ورځې پۀ ګوتو شمار که
ما **سهل** هم تنګوي دا انتظار يو

وائي لا تر اوسه **عبدالجبار** رانغے چې دا ولې
خبر خو نۀ دي چې نوکري ښۀ نۀ وي د پلار يو

# چاربيته

راغلے وې دعا له کۀ بلې مدعا له
چې پټې دې چپلې کړې جماعت نه اے مختوره
ځوک ئې د الله چوره

ځوک ئې د الله غله شه پۀ تن دې لمبه بله
راغلے وې فاتحې له او دې کړله بې ايماني
لوئې غل ئې لاثاني

لوئې غل ئې بې حسابه خانه دې شه خرابه
لړه يره اوکړه د دوزخ د هغې اوره
ځوک ئې د الله چوره

غلا کۀ ستا عادت دے دا دې بد علت دے
صابر پۀ خپل نصيب شه وي رزق اسماني
لوئې غل ئې لاثاني

توبه ګار شه مسلمانه ښکلې میاشت ده د رمضانه
عیان اسیر او مزدور ته مې چاربېته شوه في الفوره
څوک ئې د الله چوره

د مرحوم به غواړو مغفرت اوس په دا ساعت
مرګے شته د ے فرید جانه اخر به شو فاني
لوئې غل ئې لاثاني

د ذرې حساب به کیږي پهٔ محشر به تپوس کیږي
شاکر اوسه عبدالجباره کهٔ الله درکوي سپوره
څوک ئې د الله چوره

# چاربېته

ببرې وه د کهبل

ببرې وه د کهبل شوه ډوبه پۀ دریاب
ژاړي ټول عالم ورپسې کوي ارمان
هغۀ ورځ وه د طوفان

ببرې وه پورې غاړه وه خلقو ته اولاړه
خبر د ځانه نۀ وۀ ورته ولاړ وۀ عزرائیل
ببرئ وه د کهبل

ببرې ئې بوتله پۀ بره د دوئ وه مقرره
چرې ته ئې نزدې کړه پۀ شتاب
شوه ډوبه پۀ دریاب

چرې ته ئې کړه وړاندې ټول ډوب شول لاندې
ناڅاپه یکدم شور شو چم پۀ چم
ورپسې ژاړي ټول عالم

شپږ نیمې شلې تنه مړهٔ ډېر دي ژوندي کم
ساتېدونکے پاک الله دے د ګندف بچ شو زرین خان
د هغه ورځ وه د طوفان

جمروز شاه وهٔ ښکلے ځوان صفت ئې پهٔ جهان
سړے سخاوتي وهٔ د کیا کلي بې حساب
شوه ډوبه پهٔ دریاب

دا میاشت د پشکال سهل وائي دا في الحال
تاریخ کښې خطا کېږم دغه ورځ وه د منګل
ببړۍ وه د کهبل

# چاربيته

سنتر کښې د ريکروټ ژوند څرنګه تېرېږي
ملګرو نن رائځ چې پۀ دې حال مو خبردار کړم
کارونه درته شمار کړم

بهرتي چې شي کوم ځوان پۀ موج کښې وي روان
چې ځه نن مې اومونتو د خپل طبعې روزګار
چې شم به رسالدار

شم زر به پۀ عزت تربېۀ ښۀ راکړو قدرت
ډرائېور چې رانه جوړ شي بيا زما د څۀ کمے دے
خوړلے ئې سمے دے

ډرائېور پرېږده پۀ قلاره چې کلرک بهرتي شي ياره
پۀ زړۀ کښې ئې دا خيال وي چې تعليم مې دے اوچت
تل اوسم پۀ عزت

تل اوسم پهٔ شادان      کورس نهٔ وي دومره ګران
کارونه دفتري خو ازده کړي ما پخوا دي
پس تلل صرف زما دي

بس صرف رسېدل دي      کرسۍ کښې کښېناستل دي
کهٔ خېر وي زر به شمه مالک ګوتې د دفتر
روان وي ناخبر

روان وي نابلده      آخر لاړ شي تر حده
راشن کښې مېلاو بړي کله کله ورته فروټ
سنټر کښې د ریکروټ

راشن څهٔ هر یو څیز      ورکیږي پهٔ تمیز
څو ورځې ارام وي بیا د ټرېننګ ځائے له ورشي
خبر نهٔ وي خبر شي

خبر نهٔ وي چې راشي      سنټر ورته بلا شي
وي نوے نهٔ پوهیږي چې ځما کوم پلاټون دے
او یا څهٔ دلته قانون دے

يا څهٔ دي څهٔ به کيږي          هر څهٔ بهو ورته ښکاريږي
د ټرېننګ زندګي ئې شروع کامران ضرور شي
سنټرورته تنور شي

سنټر شي ورته اور          څهٔ به وايمه زهٔ نور
دومره نهٔ اوزګاريږي چې چاسره اوکړي خبرې
پهٔ زړهٔ دننه چغې

د پرېډ نه اضافي          بوټ پالش ئې وي دستي
اوشي پرې سيټهي چې لے آوټ له شئ تيار
انسپکشن له دصوبېدار

راغلے صوبېدار دے          خبر د عبدالجبار دے
هره شپه چې ځښي د چرسو سيګرټ
سنټر کښې د ريکروټ

# چاربېته

د پېرۍ عمر مې تېرېږي باوقاره
خو مرضونه مې بې سیار شي
یار خبر کړه د احواله مې ریباره
یو ورځ به پۀ ما خاورې انبار شي

د هجر شپې مې زحمتونه وائي
او تورې شپې ماښامونه وائي
جنازه اوځي به مې تر مینې لاره
چشم خاص به اشکبار شي
یار خبر کړه د احواله مې ریباره
یوه ورځ به پۀ ما خاورې انبار شي

تل ارمانونه د زوړ وخت کومه
د خلوص ډک د محبت کومه
د الله ډېر یم شکر ګزاره
پۀ ما احسان د پروردګار شي
یار خبر کړه د احواله مې ربباره
یو ورځ به پۀ ما خاورې انبار شي

چاته شکوې شکايتونه کولے نۀ شم
پردې خپلې فاش کولے نۀ شم
صبر دې لويه خزانه کړه عبدالجباره
الله ستا به پرده دار شي
يار خبر مې د احواله کړه ربباره
يوه ورځ به پۀ ما خاورې انبار شي

# چاربېته

اعتبار به څۀ اوکړم پۀ چا باندې
ظلم خو ډېر اوشو پۀ ما باندې
پۀ نۀ خبره ئې تکرار وکړو
یار پۀ یارۍ کښې داسې کار وکړو

زۀ ئې پۀ شان د لېونو کړم
ډېر ئې مجبور پۀ اسوېلوکړم
اوښکې څڅومه پۀ ژړا باندې
ظلم خو ډېر اوشو پۀ ما باندې

ماته ښکاره پکښې تیارې شوې
نن ئې بدلې ارادې شوې
پۀ ما ئې ټک لکه د مار وکړو
یار پۀ یارۍ کښې داسې کار وکړو

ختمه چې یار ښکلي یارې کړه
پۀ هر اعیار ئې خوشحالي کړه
ټکرې خورمه ورځې رڼا باندې
ظلم خو ډېر اوشو پۀ ما باندې

اسویلي ستړي مې د خلې لاړل
ښکلي یاران مې د دېرې لاړل
الله خبر چې چا راته ازار وکړو
یار پۀ یارۍ کښې داسې کار وکړو

دغم چاپو کښې شومه ګېر
پۀ حال خبر شو د تورډهېر
ډیوټې کوي ساحل صرا باندې
ظلم خو ډېر اوشو پۀ ما باندې

خبر د حاله مې یاران شو
ګوته پۀ خله واړه حېران شو
تلقین د صبر ئې بسیار وکړو
یار پۀ یارۍ کښې داسې کار وکړو

زما پرې ډېر وۀ اعتماد
د بونېر مسین مې شو رایاد
دروغ ئې ووې سترګو رڼا باندې
ظلم خو ډېر اوشو پۀ ما باندې

ما **عبدالجبار** ته ئې بهانې جوړې کړې
ورسره ئې نورې افسانې جوړې کړې
څۀ بې شانه ئې کردار وکړو
یار پۀ یارۍ کښې داسې کار وکړو

# نظم

پۀ نامه د اجتماعيت ، انفراديت پکښې ځلېږي
وګورئ ملګرو خصوصيت پکښې ځلېږي
ادب لري معراج چې ليکوال وي باشعوره
دا مې تجزيه ده اخوت پکښې ځلېږي
چې ژوندۍ پۀ ښکلو زړونو جذبه وي د ادب
بيا شان د ادب نۀ دے چې نفرت پکښې ځلېږي
د ذوق يوې نغمې مې د سپرلي غوندې آغاز کړو
د تېر شوي شاعرانو وضاحت پکښې ځلېږي
د زړۀ پۀ وينو ايښي امانت او اخون ئې بنيادونه
احمدګل وې دا به ګل شي رنګت پکښې ځلېږي
احمد دين طالب ئې مهمان د بوقو د ابراهيم خان
اوږده د کال ئې مېلمستيا وه موانست پکښې ځلېږي
د قدرت پۀ ګل رنګينو مئين ناصح عبدالمجيد وۀ
د آبياتو پۀ نګينو نصيحت پکښې ځلېږي
د آبياتو ښکلو غنچو به ئې د حسن رنائي کړه
د ټوپۍ جمشېد مصروف وۀ نُدرت پکښې ځلېږي
خوب ژنې ارادې به وېښولې د مېنې باران
دانشور وۀ رحيم شاه طالب موافقت پکښې ځلېږي

بړاسونه ارمانونه د مینې تائب اُوړي پۀ زړۀ
د آبیاتو ئې وۀ خوندونه لطافت پکښې ځلېږي
د تقویٰ پۀ ښکلې سجده ګل احمد مینوي فناه شو
رب ئې نصیب هغه سجده کړه مغفرت پکښې ځلېږي
اوچت معراج د شاعرۍ د بزمې مې نۀ هېرېږي
پۀ بابت د افسانې ذهانت پکښې ځلیږي
د جرس غوندې شور ناکه حیدرزمان به کړه چاربېته
د سوزه ډکه به دردناکه هیبت پکښې ځلېږي
اشعارو سره لوبې به د روان وې پۀ ویښه خواب
پۀ تړون ئې د چاربېتې وانست پکښې ځلېږي
ژوندے ادب کښې لرې نوم منصور دې الله اوبخښي
زیبا ئې دي اشعار لطافت پکښې ځلېږي
باسي وۀ د خدوخېلو یادېدو پۀ حاجي خېلو
پۀ محمد الله د غورغشتو غېر سکونت پکښې ځلېږي
پۀ سفر تلے د بل جهان د مینې ملک حېدر زمان
هر نفس لره دے فان رحلت پکښې ځلېږي
د چاربېتو وۀ ماهر د ګندف مرحوم شاکر
ډېر فصیح زبان وۀ معاشرت پکښې ځلېږي
پۀ ماضي به اؤرېدے شوے د رحم دین سالار چاربېتې
لټون ورپسې اوکړئ صداقت پکښې ځلېږي

د چاربېتو ذهين استاذ اعوان سردار بهادر وۀ
معروف ډېر وۀ پۀ هېواد شهرت پکښې ځلېږي
اشتياق خاکسار خطائي نۀ کړه ښۀ خبر دے د صيغې نه
دستار لري پۀ راس علميت پکښې ځلېږي
د ګندف اشرف علي مومن درس ورکوي ښۀ مطمئن
مدرس او معلم دے صلاحيت پکښې ځلېږي
د غمونو قرار ئې دے شبنم کړې خپلې اوښکې
د کلابټ عاجز معموم دے استقامت پکښې ځلېږي
د بخشالي دے د مردان اوسېږي پۀ اُتمان
قاسم دے نر ځوان محنت پکښې ځلېږي
د قام قلم ډېر معتبر مانړوال جهان بهادر
معززه هم زړور عزت پکښې ځلېږي
لائق دے د ورورۍ يار بهادر د مانړۍ
چاربېتې ليکي د هوښيارۍ وضاحت پکښې ځلېږي
اشعار لري لکه ګوهر مانړوال تصور
عظيم دے دانشور لياقت پکښې ځلېږي
صفا د زړۀ لري زُجاج هم نرم مزاج
اشعار وائي تل معراج ملائمت پکښې ځلېږي
وه مينه کښې ئې لذت د شېر شاه روغاني پۀ محبت
رب دې نصيب کړي مغفرت عاقبت پکښې ځلېږي

پۀ کلي نيمه ټکړه ښۀ ده نظامه د پردېس نه
نه د هجر اندېښنې شي او نۀ زحمت پکښې ځلېږي
سهېل اوسي کۀ متکنو کښې خو دے مې د زړۀ پۀ دريچوکښې
ليدے خو نۀ شي پۀ مودو کښې رفاقت پکښې ځليږي
عبدالله مولوي هم کنډېوال دے ډېر ښکلے وال دے
معلم ډېر د کمال دے خدمت پکښې ځليږي
بسمل سبزعلي خان او د پاپېنۍ حېدر زمان
رب لري دي دوئ پۀ امان ثقافت پکښې ځليږي
تۀ تلو تلو ښکلي سپرلي نغارې کړي د ګرمۍ
د موسم پۀ تغير کښې د الله حکمت پکښې ځليږي
د حسرت يوه غنچه د **سهل** شوه د خاورو لاندې
چاپېره خاموشي ده حسرت پکښې ځليږي
شاعران ډېر شته عبدالجباره پۀ ډېرو انبار ده خاوره
ليکلے ئې نۀ شي نمبر واره د مُخ قوت پکښې ځليږي
تمنا لري طوفان چې کتاب دې زمونږ خور شي
ښکلې ارزو د ميربشر ده منفعت پکښې ځليږي
حال د لېونتوب د ګل محمد جانان ته مۀ وايئ
في الحال د سړيتوب د سُر ذوقيت پکښې ځليږي
ګاونډي مې نۀ دے هېر کم عمره دے زبېر
اشعار وائي دلبر جرات پکښې ځليږي

غنچې ښکلې د ګلو د بابر جدون پۀ لاس
دي ئې چاله شوکولي نکهت پکښې ځليږي
کړي د ګلو غنچې جوړې شعر پرې مزين کړي
ذهانت د عيسیٰ خان دے ذهانت پکښې ځليږي
مړاوے شوق د شاعرۍ پۀ سبب د مجبورۍ
د ګندف جمشېد خياط دے مصروفيت پکښې ځليږي
چې څۀ اوليکم د زړۀ نه ناياب ته ئې تحفه کړم
وخت قيمتي ماله ډېر راکړي ښۀ خصلت پکښې ځليږي
د ګندف شاعر رېحان خوي لري عجب فنان
رب لري دې پۀ امان شرافت پکښې ځليږي
طاهره واخله دُر ښه پۀ لاس نغمه پۀ ترنم کړه
زړګے مې خوش خرم کړه بريبت پکښې ځليږي
د ادب ښکلے ګلفام نياز امين د کټګرام
لائق د احترام خوږلت پکښې ځليږي
دا څوک راځي پۀ لاره باده روشه پۀ قلاره
فضل قيوم دے پۀ تلواره مشئت پکښې ځليږي
چې خبر نۀ دے د قاعدې د واحد د تثنيې
جاهل څله تنقيد کاندي جهالت پکښې ځليږي
قائم دائم الله دے ذي روح کله دائم
دائم دې فکر اوکړي وحدانيت پکښې ځليږي

لري د ادب غنچې غوټۍ تاج بهادر تاج د ذروبۍ
پۀ کردار د عقلمندۍ قدامت پکښې ځليږي
د مرغز مراد او پذير تقرير ئې وي بے نظير
پۀ اظهار ئې وي جاګير مماثلت پکښې ځليږي
سپين ريشه مير قادر شاه بې درد کۀ نادر شاه
خبر پرې ربحان شاه ډېر وخت پکښې ځليږي
تپوس ئې نۀ کوي جانان د مشفق مير اعظم خان
رښتيا وايم پۀ ايمان فرقت پکښې ځليږي
شېر او مسين ورک شول تر مطلبه ئې وه ياري
آصف دې الله تل لري مروت پکښې ځليږي
پنده خېلے مې دے ملګرے ليکوال هم دے ښکلے
کۀ مدعو کومه ئې ادب ته معذرت پکښې ځليږي
د خلوص ليندې پۀ لاس د ادب غشي پۀ ګروت
غونډه دا د قام قلم سپين نيت پکښې ځليږي
کۀ د هر ځائے شاعران دي ټول فصيح زبان دي
صوابۍ او کۀ مردان دے موزونيت پکښې ځليږي
مړاوي هوسونه مې تازه شي چې اورمه طوراج
هر شعر ئې ډک د کمال وي مسرت پکښې ځليږي
د آهدې کلي ابراهيم ډار نېک بخته ايماندار
مدد کاندې د ناچار خدمت پکښې ځليږي

الله لري دې عمر دراز د اسماعيل خيل محمد نواز
کوومه پرې زۀ ناز وکالت پکښې ځليږي
دې هر چاته پۀ ګوته د فقير خطاب ملنګ اشعار
شو خاورې خبر زمان خاورې مدت پکښې ځليږي
د وطن پۀ خړه خاوره شيدائي مزدور ياديږي
شوه د عمر تقاضه ئې انقلابيت پکښې ځليږي
ملګري ئې تعريف کاندي اوربدلے اسير مانۀ دے
دومره ترې خبر يم صحافت پکښې ځليږي
د پنج منه تر صوابۍ علي درومي پۀ تعدۍ
فائز پۀ پابندۍ سياست پکښې ځليږي
د مرحوم باران پِسر زاهد زمان سحر
اشعار لري ګوهر صدارت پکښې ځليږي
ارادې د پښتون د هرې ونې د احمد پۀ زړۀ
درمندې افسانې د سوز کيفيت پکښې ځليږي
ليفټيننټ فضل الرحيم اشعار ئې وو نعيم
اعلیٰ ئې وۀ تعليم قابليت پکښې ځليږي
د ټوپۍ عظيم الله وه د چاربېتو ئې ښکلا
بخښنه غواړمه ئې د الله تعزيت پکښې ځليږي
چاربېتې ئې شته دے زنځيرۍ زرين مجبور د مينۍ
پۀ کردار د شاعرۍ فضيلت پکښې ځليږي

فضل احمد نهٔ وهٔ دلګیر پهٔ زروبې ئې وهٔ جاګیر
د بې وفا یاره ظهیر خلوت پکښې ځلیږي
د کلابټې حضرت جمال اشعار ئې وو ډېر د کمال
هر ذي روح لره زوال اخرت پکښې ځلیږي
معروف ډېر وهٔ بختور د اسماعیله جوشي علي حیدر
پهٔ سبب د یو پسر هجرت پکښې ځلیږي
محب الله وهٔ د جهنډې ځلے ئې جوړ پهٔ هډېرې
وې چاربېتې د مزې نزاکت پکښې ځلیږي
اشعار ئې وو د ځیګر خون د مېنې شاعر اجون
د هر چا به وهٔ ممنون حقیقت پکښې ځلیږي
پهٔ ګډون لري تربګنې نور محمد وهٔ د چنې
وې چاربېتې مړنې وجاهت پکښې ځلیږي
ویښه وي غوټې د آبیاتو پهٔ چپه کښې
د زېدې تصور ته پسخیږي د ترنم ذوقیت پکښې ځلیږي
رب لري دې پهٔ امان د کنډې خلیل الرحمان
د لیدو ئې لرم ارمان کهٔ ډېر وخت پکښې ځلیږي
کړه اخر له تخفه جوړه دنیا میراته ده عبدالجباره
منفي شان ددې دنیا دے رحلت پکښې ځلیږي

# چاربیته

## ''سوال جواب''

ټیک مې د زړو مزېدار دے
پهٔ غونډه زنه مې خالونه
اوس مې د نوې زوانۍ وار دے
اږدم پهٔ زلفو کښې ګلونه

ټیک مې د زړو پهٔ اوربل کښې کنه
شعلې ترې خیژي پهٔ هر لور
غمي مې ایښي پهٔ چارګل کښې کنه
پهٔ سپینه پوزه مې کړل سور
ثاني مې نشته پهٔ کابل کښې کنه
صفت مې کیږي لور پهٔ لور
سپینه سینه مې بالا حصار دے
راځه کوه پکښې سېلونه
ټیک مې د زړو مزېدار دے
پهٔ غونډه زنه مې خالونه

سپينه سينه دې لکه تخت صنمې
زۀ پرې کومه عدالت
ليچې کړه راته بالخت صنمې
چې پرې اودۀ شم دا ساعت
عمر شو تېر راباندې سخت صنمې
راحت مې نۀ وۀ پۀ قسمت
ورک مې په تاپسې قرار دے
وايم د زړۀ درته حالونه
تېک مې د زړو مزېدار دے
پۀ غونډه زنه مې خالونه

ورک دې پۀ ما پسې ارام شو نن
اوس مې سر کېده پۀ مړوند
شيرين بدن مې در انعام شو نن
بشر مې تا کړلو څرګند
خبر مې کور او کلے قام شو نن
ياري کوي دغسې خوند
ستا محبت کښې مې روزګار دے
چې مور دې کړم پۀ وصالونه
تېک مې د زړو مزېدار دے
پۀ غونډه زنه مې خالونه

ستا محبت باندې خبر شومه زهٔ
درنه خوشحاله شوم نادرې
منم پهٔ حقه دې دلبر شومه زهٔ
راته کوه د نیاز خبرې
موړ دې پهٔ سرو شونډو شکر شومه زهٔ
کوکې دې دواړه ملغلرې
الله درکړے سپین رخسار دے
سترګې دې سرې لکه لعلونه
ټیک مې د زړو مزېدار دے
پهٔ غونډه زنه مې خالونه

الله راکړے سپین بشر هلکه
ثاني مې نشته خاپېرو کښې
سور مې پېزوان لکه د نمر هلکه
بدن مې ګل پهٔ منجرو کښې
ورکؤم ستا پهٔ مینه سر هلکه
خوښه يم تاسره مېړو کښې
د عاشقانو دغه کار دے
چې شوګیرې کړي پهٔ کلونه
ټیک مې د زړو مزېدار دے
پهٔ غونډه زنه مې خالونه

د عاشقانو ژوندانۀ کښې ياره
چرته به رانشي اسانه
طاعون مې ګېر شو لړمانۀ کښې ياره
اوس به رغېږمه پۀ ګرانه
مخ به مې پټ پۀ کفانه کښې ياره
سفر کؤم به د دنيا نه
**عبدالجبار** ترې پۀ رفتار دے
ډېر به ئې پاتې شي مثالونه
ټيک مې د زړو مزېدار دے
پۀ غونډه زنه مې خالونه

پهٔ تا مئین ګنهګار خو نهٔ یم
پهٔ سرو لمبو مې ګوګل ثله نیسې



عبدالجبار سهل



توراج خاکسار

دَ تسلی اؤ مصلحت جانان مي خاؤرو له لاړ
خالقه چا ته دَ خپل سترې ژوند قیصه اوکړمه

خپرؤونکي: سید کمپوزنګ سنټر ټوپی